# الإرشاد إلى محاسن الجهاد ومضار الفرق الوطنية أهل الفساد

## د جهاد د ښکلا او د فاسدو وطني ډلو ټپلو د زیانونو په اړه لارښوونه!




ذو القعدة
1446

# الإرشاد إلى محاسن الجهاد
# ومضار الفرق الوطنية اهل الفساد

## د جهاد د ښکلا او د
## فاسدو وطني ډلو ټپلو د
## زیانونو په اړه لارښوونه!




العزائم
نشراتی إداره

ذو القعدة
1446

## سرليکونه

مقدمة ١
اول فصل ٢
د شرعي جهاد معنا، اهداف، اصول او شرطونه! ٢
د جهاد مفهوم: ٢
د جهاد اهداف! ٤
د شرعي جهاد ضوابط او اصول! ٣٠
د جهاد شرطونه ٥٢
دويم فصل ٥٦
د موجوده منحرفو ډلو حال ته کتنه! ٥٦
جهاد او ډيموکراسي! ٥٧
جهاد او قوميت او وطنيت! ٧٧
په اسلام کې د وطنيت او قوميت حکم! ٧٧
جهاد او صوفيت! ٨٩
صوفيانو ته لنډه کتنه! ٨٩
١. اوله طريقه - نقشبنديه: ٩٠
د قادري صوفيانو عقائد: ١٠٧
٢. دريمه طريقه. سهرورديه: ١١٥
٣. څلورمه طريقه. چشتيه: ١١٧
د صوفيه ؤ له دغو منحرفو عقائدو څخه ځيني ديوبندي اکابر هم متاثره دي: ١١٨
خلاصة البحث: ١٢٦

جهاد او اخوانېزم! ______ ۱۲۹
خلاصة البحث: ______ ۱۵۲
جهاد او د بين الملل قوانينو ته ژمنتيا! ______ ۱۵۳
خلاصة البحث: ______ ۱۶۶
جهاد او د نړيوالو كفارو او مرتدينو مرستې! ______ ۱۶۸
خلاصة البحث: ______ ۱۷٤
نو مونږ هم مسلمانانو ته دا پيغام لرو! ______ ۱۷۵
جهاد او د موحدينو په خلاف له كفارو سره مرسته! ______ ۱۷٦
جهاد او منهجي فساد! ______ ۱۸۰
۱. د شركي مزارونو تعظيم: ...... ۱۸۰
۲. په حيلو سره د ځيني نشه يي توكو آزادي! ...... ۱۸۲
۳. له مسلمانانو څخه ټكسونه اخستل: ...... ۱۸۵
۴. د اصلي كفارو او مرتدينو سره د خبرو اترو دهليز: ...... ۱۸۷
۵. دپلوماتيكې اړيكې: ...... ۱۹۱
۶. د دار الاسلام د قيام مخنيوى: ...... ۱۹۳
۷. د نبوي منهج مخنيوى. ...... ۱۹٤
خلاصة البحث: ______ ۱۹۶
يوه شبهه او د هغې ځواب ______ ۱۹۷
دريم فصل ______ ۲۰۱
د حق ډلې پلټنه! ______ ۲۰۱
د حق ډلې اوصاف: ______ ۲۰۲

بسم الله الرحمن الرحيم

# مقدمة

**الحمد لله الكبير المتعال والصلاة والسلام على الضحوك القتال وعلى آله وصحبه ذوي النسک والنزال أما بعد:**

فقد قال الله ﷻ: الَّذِينَ ءَامَنُوا يُقَٰتِلُونَ فِى سَبِيلِ اللَّهِ ۖ وَالَّذِينَ كَفَرُوا يُقَٰتِلُونَ فِى سَبِيلِ الطَّٰغُوتِ فَقَٰتِلُوٓا أَوْلِيَآءَ الشَّيْطَٰنِ ۖ إِنَّ كَيْدَ الشَّيْطَٰنِ كَانَ ضَعِيفًا؛ [سُورَةُ النِّسَاء : ٧٦].

وعَنْ أَبِي مُوسَى ﷺ، قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ، فَقَالَ الرَّجُلُ: يُقَاتِلُ لِلْمَغْنَمِ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلذِّكْرِ، وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِيُرَى مَكَانُهُ فَمَنْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ؟ قَالَ: " مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ " رواه البخاري.

د جهاد په نوم راپورته شوي ډېرى ډلې او تنظيمونه هر يو د دې دعوه کوي چې مونږ د الله د کلمې لوړولو او د شريعت د قائمولو په خاطر جنګيږو، او په دغه لاره کې خپل سر او مال قربانوو، زخم، اسارت او هجرت ته تيار يو چې ډېرى يې ورسره عملاً هم مخ دي او ځيني پکې تر يو منزله رسيدلي دي خو که بل لورې ته له دوى څخه د ځينو منهج او تګلارې ته کتنه وشي نو د تورتمونو ډکه، د شبهاتو او د شکونو ډکه، د نړيوالو طواغيتو اسيره، د وطني او قومي طاغوت اسيره او له داسې نورو ډېرو مفاسدو ډکه وي، د جهاد نوم يوازې د يوه سمبول په توګه کاروي نور يې په مستقيم يا غير مستقيم توګه د معنا او د مقاصدو خلاف، د شرعي جهاد د تګلارې خلاف او هم يې د اصولو او شرطونو خلاف وي، نو په دې کتاب کې به د شرعي جهاد په معنا، اهدافو، اصولو او شرطونو بحث وکړو او هم به يې تر څنګ د جهاد په نوم د راپورته شويو ډلو تګلارې ته کتنه وکړو او د حق ډلې پلټنه به وکړو ان شاء الله.

**وصلى الله على نبينا محمد وعلى آله وصحبه أجمعين.**

# اول فصل

# د شرعي جهاد معنا، اهداف، اصول او شرطونه!

## د جهاد مفهوم:

دا چې د جهاد مفهوم په اوس وخت کې ډېر پراخه شوی او هر څوک خپلې مبارزې ته دغه نوم کاروي که څه هم مبارزه يې باطله او د شيطان په لاره کې وي نو له دي وجې د جهاد شرعي معنا ته اړتيا راځي دي لپاره چې حقيقي جهاد د نورو جنګونو او مبارزو نه جلا وپېژندل شي:

## جهاد په لغت کې:

مصدر دی له جهد څخه اخستل شوی تکليف او طاقت ته ويلی کېږي، جاهَدَ العَدُوَّ مُجَاهدةٌ، وجِهاداً: قاتله. (معجم الوسيط)، په لسان العرب کې دي:

**الجهاد:** المبالغة واستفراغ الوسع في الحرب أو اللسان أو ما أطاق من شئ، اهـ . (لسان العرب ٣ /١٣٤ مادة جهد). ژباړه: کوښښ کول او په جګړه کې د خپل توان څخه کار اخستل، يا د ژبې کارول، يا د هغه څه کارول چې توان يې لري.

## جهاد په اصطلاح کې:

علماوو شرعي نصوصو ته په کتو د جهاد معنا داسې کړې:

هو بذل الجهد وتفريغ الوسع في قتال أهل الكفر والعناد لتكون كلمة الله هي العليا وكلمة الذين كفروا السفلى. **ژباړه:** د کفارو او عنادګرو په جګړه کې خپل وس او توان خرچ کول دي لپاره چې د الله کلمه (دين) لوړه شي او د کافرانو کلمه (قانون) ښکته شي.

شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله دغه معنا ته په اشارې وایې:

الجهاد حقيقته الإجتهاد في حصول ما يحبه الله من الإيمان والعمل الصالح وفي دفع ما يبغضه الله من الكفر والفسوق والعصيان،[الفتاوى الكبرى لابن تيمية ٥ /١٨٧]

**ژباړه:** جهاد په حقیقت کې د هغه څه د تر لاسه کولو هڅې ته وایي چې الله عزوجل یې خوښوي چې ایمان او نیک عمل دی او د هغه څه د دفعه کولو هڅه کول چې د الله عزوجل بدي شي چې کفر، ګناه او نافرماني ده.

**ابن الهمام د جهاد معنا ته په اشاره وایې:** إخلاء العالم من الفساد [فتح القدير لابن همام ٥/٤٣٤] **ژباړه: نړۍ له فساد څخه پاکول دي.**

**سید قطب په(ظلال القران ٢ /١٣٢١) کې وایې:**

الجهاد هو السعي المتواصل والكفاح المستمر في سبيل إقامة نظام الحق، ليس غير، وهذا الجهاد هو الذي يجعله القرآن ميزانا يوزن به إيمان الرجل وإخلاصه للدين.

**ژباړه: جهاد د حق نظام د تحقق لپاره پرله پسې او دوامداره مبارزه ده، نور څه نه دي، او همدا جهاد دی چې قرآن ترې داسې پیمانه جوړه کړې چې د انسان ایمان او دیني اخلاص پرې تلل کېږي.**

نو د جهاد له مفهوم څخه داسې جوته شوه چې جهاد یوازې هغه مبارزې ته وایې چې د الله عزوجل د کلمې د لوړاوي لپاره وي او نور هیڅ ډول نامشروع اغراض په کې نه وي د جهاد د دغه معنا تائید په ډېرو احادیثو کې شوی دی چې ځیني یې په دې ډول دي: په مخکې حدیث کې ذکر شو نبي علیه السلام فرمایې: **مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ " رواه البخاري.** ژباړه: څوک چې دې لپاره جنګېږي چې د الله عزوجل کلمه لوړه شي نو هغه د الله په لاره کې دی.

او په حدیث د عمرو بن عبسه کې دي یو سړي د نبي علیه السلام نه د نورو پوښتنو تر څنګ دا پوښتنه هم وکړه:

قال: وَمَا الْجِهَادُ ؟ قَالَ: " أَنْ تُقَاتِلَ الْكُفَّارَ إِذَا لَقِيتَهُمْ ". قَالَ: فَأَيُّ الْجِهَادِ أَفْضَلُ ؟ قَالَ: " مَنْ عُقِرَ جَوَادُهُ ، وَأُهْرِيقَ دَمُهُ " . (مسند أحمد ١٦٦٩١) ژباړه: هغه سړي وويل: جهاد څه ته وايي؟ نبي عليه السلام وفرمايل: دا چې ته د کافرانو سره جنګ وکړې کله چې ورسره مخامخ شې، نو هغه سړي وويل: کوم جهاد ډېر غوره دی؟ نبي عليه السلام وفرمايل: هغه څوک چې آس يې زخمي شي (يا ووژل شي) او وينه يې توی شي.

او په حديث د احمد او ابو داود کې دي: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ ، أَنَّ رَجُلًا قَالَ : يَا رَسُولَ اللَّهِ ، الرَّجُلُ يُرِيدُ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ، وَهُوَ يَبْتَغِي عَرَضَ الدُّنْيَا ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ:" لَا أَجْرَ لَهُ ".فَأَعْظَمَ النَّاسُ ذَلِكَ، وَقَالُوا لِلرَّجُلِ: عُدْ إِلَى رَسُولِ اللَّهِ ﷺ، لَعَلَّهُ لَمْ يَفْهَمْ. فَعَادَ، فَقَالَ: يَا رَسُولَ اللَّهِ، الرَّجُلُ يُرِيدُ الْجِهَادَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ، وَهُوَ يَبْتَغِي عَرَضَ الدُّنْيَا؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: " لَا أَجْرَ لَهُ " ، ثُمَّ عَادَ الثَّالِثَةَ، فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ " لَا أَجْرَ لَهُ ". (مسند أحمد ٧٦٩٩) وأبو داود (٢٥١٦)- ژباړه: د ابو هريره رضي الله عنه څخه نقل دي چې يو سړي وويل: ای د الله عزوجل رسوله! يو سړی د الله په لار کې جهاد کول غواړي په داسې حال کې چې د دنيا سامان هم طلب کوي (نو ايا د ده اجر شته)؟ نو رسول الله ﷺ وفرمايل: هېڅ اجر يې نشته، نو خلکو دا خبره ډېره غټه وګڼله او سړي ته يې وويل: رسول الله ﷺ ته بېرته وګرځه شايد هغه نه وي پوهه شوی، نو دغه سړي بېرته وګرځېدو او وې ويل: ای د الله رسول ﷺ! يو سړی د الله په لار کې جهاد کول غواړي په داسې حال کې چې د دنيا سامان هم طلب کوي (نو ايا د ده اجر شته)؟ نو رسول الله ﷺ وفرمايل: هېڅ اجر يې نشته، بيا دريم ځل هم رسول الله ﷺ ته وګرځېدو نو بيا يې هم ورته وفرمايل: هېڅ اجر يې نشته.

**نو دا خو د جهاد شرعي معنا وه، اوس د جهاد د اهدافو په اړه هم غږېږو نو وايو:**

# د جهاد اهداف!

جهاد د خپلې ذکر شوې شرعي معنا تر څنګ خپل مهم اهداف هم لري چې ځینې یې په دې ډول دي:

## ۱. اول هدف:

### د الله په ځمکه د دین قیام او د الله رب العالمین خالصه بندګي کېدل:

دا هغه هدف دی چې د دې لپاره اللهﷻ د ټولو انسانانو او پېریانو تخلیق کړی دی لکه اللهﷻ فرمایي: وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ [سُورَةُ الذّاريَات : ٥٦]

**ژباړه:** ما پېریان او انسانان له دې پرته چې زما بندګي وکړي د بل څه کار لپاره ندي پیدا کړي، نو د ټولو پېریانو او انسانانو د پیدائش اساسي مقصد د یو الله عبادت دی چا چې دغه مقصد پرېښی او بل طرف ته یې مخه کړې یا یې هم د کاڼي، بوټي، پېري، انسان، لمر، سپوږمۍ او داسې نورو شیانو عبادت ته مخه کړې نو هغوی سره به جهاد کېږي چې بېرته خپل اصلي مقصد ته راوګرځي او یا هم د ذلت په حال کې ژوند تېر کړي. د یو الله بندګي کول او د شرک نه ځان ساتل په ټولو پېریانو او انسانانو د اللهﷻ حق دی څوک چې د اللهﷻ دغه حق نه ادا کوي جهاد به ورسره کېږي، نو مجاهدین چې د اللهﷻ لښکر دی د اللهﷻ د دغه حق لپاره به جنګېږي لکه په حدیث کې راځي:

**وعن مُعاذ بن جبلٍ رضي الله عنه قال: كنتُ رديف النبيِّ ﷺ على حمارٍ فقال لي: يا معاذ، أتدري ما حقّ الله على العباد؟ وما حقّ العباد على الله؟ قلت: الله ورسوله أعلم، قال: فإنَّ حقَّ الله على العباد أن يعبدوه ولا يُشركوا به شيئًا، وحقَّ العباد على الله أن لا يُعذِّب مَن لا يُشرك به شيئًا، قلت: يا رسول الله، أفلا أُبشر الناس؟ قال: لا تُبَشِّرهم فيتَّكلوا (أخرجه البخاري ٢٨٥٦ ومسلم ٣٠) ..**

**ژباړه:** د معاذ بن جبلؓ څخه نقل دي هغه وايې: زه نبيﷺ پسې وروسته په خره سپور وم نو ماته يې وفرمايل: ای معاذه! ايا ته پوهېږې چې د اللهﷻ حق په بندګانو څه دی او د بندګانو حق په اللهﷻ څه دی؟ نو ما ورته وويل: الله او د هغه رسول ښه پوهه دي، نبيﷺ وفرمايل: د الله حق په بندګانو دا دی چې د هغه بنده ګي وکړي او د هغه سره هېڅ برخه دار جوړ نه کړي او د بندګانو حق په اللهﷻ دا دی چې هغه چا ته عذاب ورنکړي چې د اللهﷻ سره يې هېڅ برخه دار نه وي جوړ کړی، ما وويل: ای د الله رسوله! ايا خلکو ته زيری ورنکړم؟ هغه راته وفرمايل: خلکو ته زيری مه ورکوه بيا به هغوی توکل وکړي.

نو د اللهﷻ د عبادت حق د ډېر پخوا راهېسې ضايع شوی او بل چا ته ورکړل شوی، په ځمکه کې ډول ډول معبودان پيدا شوي چې د اللهﷻ سره يې په دغه حق کې جګړه شروع کړې نو د داسې خلکو سره به جهاد کېږي دې لپاره چې د عبادت حق يوازې الله ته خاص کړي چې اصلي حقدار يې دی او بل چا ته دغه حق ورنکړي، له دې وجې جهاد سوچه عدل دی ځکه په دې سره حق د عبادت خپل اصلي مالک ته ورکول کېږي چې اللهﷻ دی او هغه خلک ظالمان دي چې د اللهﷻ حق بل چا ته ورکوي هغوی د عذاب او د سزا مستحق دي، د ذلت مستحق دي، د وژلو مستحق دي. نو په دې حديث کې هغه چا ته وېره ده چې مجاهدينو ته محض د جهاد له وجې ظالمان وايې ځکه چې دوی د الله د حق لپاره جنګېږي چې عبادت دی، د الله په ځمکه د شريعت قيام دی او هغه کس ته هم په کې وېره ده چې ځان ته مجاهد وايي خو جهاد يې د الله په لار کې نه وي د الله په ځمکه يې د الله بندګي هدف نه وي بلکې قومي ترې او روايتونه يې هدف وي او وطني ګټې يې هدف وي نو په دغه لاره کې جنګېدل شرعي جهاد نه دی.

## ۲. دويم هدف:

### د الله د ځمکې نه د شرک ختمول چې تر ټولو لوی ظلم او لوی فساد دی:

شرک ځکه لوی ظلم دی چې په دې کې د الله حق بل چا ته ورکول شوی ځکه د ظلم تعريف داسې شوی: **وضع الشئ في غير موضعه**، يو شی د خپل اصلي ځای نه په بل ځای کې ايښودل، نو عبادت چې کله د حقيقي مالک ونشي او بل چا ته ورکړی شي نو دا ظلم دی، د دې ظلم او فساد مخنيوی به په جهاد سره کېږي نو ځکه خو اللهﷻ فرمايي:

**وَقَٰتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ لِلَّهِ- فَإِنِ انتَهَوْا فَلَا عُدْوَٰنَ إِلَّا عَلَى الظَّٰلِمِينَ[سُورَةُ البَقَرَة : ١٩٣]** **ژباړه:** او تاسې له هغو(کافرانو) سره وجنګېږئ تر دې پورې چې فتنه يعني شرک پاتې نشي او دين د الله لپاره شي، بيا که هغوی لاس په سر شول، نو وپوهېږئ چې له ظالمانو پرته د بل چا په ضد لاس غځول روا نه دي.

نو تر څو چې د دې ظلم مخنيوی نه وي شوی له ځمکې څخه د شرک او د کفر فتنه نه وي ختمه شوې جهاد به جاري وي له دې وجې خو حديث کې راځي نبي عليه السلام فرمايي: **عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ أَنَّهُ قَالَ : لَنْ يَبْرَحَ هَذَا الدِّينُ قَائِمًا، يُقَاتِلُ عَلَيْهِ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ ، حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ رواه مسلم ٣٦٥٨)**

**ژباړه:** د جابر بن سمرهرضي الله عنه څخه نقل دي هغه يې د نبيعليه السلام څخه نقلوي چې هغه فرمايلي دي: دا دين به همېشه ولاړ وي چې د مسلمانانو يوه ډله به پرې جنګېږي تر دې چې قيامت قائم شي.

حديث دليل دی چې جهاد به تر قيامته جاري وي. او تر يوې زمانې به خاص نه وي. نو هغه خلک خطا شوي دي چې جهاد ته د پای ټکی ږدي د کفارو سره دائمي صلحې کوي او د جهاد زمانه ختمه بولي، مونږ ورته وايو ايا دغه هدف مو لاسته راوړی کوم چې الله مونږ ته ټاکلی دی؟ ايا په دنيا کې شرک او فساد ختم شوی؟

که لا هم زیات شوی او د شرک هډې لا پسې قوي شوي، لښکر یې نور هم زیات شوی، د شرک ډلونه نور هم زیات شوي، بلکې مستقله قانون سازي ورته شوې!!!
دا خو واضحه خبره ده چې شرک لا هم په ترقۍ روان دی نو جهاد به جاري وي او د چا په جعلي صلحو سره به ورته د پای ټکی نشي ایښودل کېدای. همداراز هغه خلک هم خطا شوي چې جهاد یوازې تر یوې علاقې رامحدودوي او په بله علاقه کې یې قائل نه وي، دغه ګومان هم صحیح نه دی بلکې جهاد لپاره غایه د شرک ختمول مقرر شوې شرک چې هر ځای کې وي په خلاف به یې جهاد کېږي، او د دې لپاره کومه ځمکه یا علاقه غایه نده ګرځېدلې نو څوک چې ورته یوه ځمکه خاص کوي هغه د الله او د رسول نه ځان مخکې کوي ـ العیاذ بالله ـ په جهاد کې باډرې او پولې نشته، ځمکه ټوله د الله ده په دغه ټوله ځمکه د اللهﷻ توحید قائمول د جهاد غایه او هدف دی. څوک چې د دغې هدف لپاره جنګېږي هغه د الله د لارې مجاهد دی او مبارزه یې شرعي ده خو څوک چې د دغې په خلاف د نورو مقاصدو لپاره جنګېږي او د خپلې مبارزې لپاره نورې غایې مقرروي،د بین الملل کرښې یې غایه وي، د هغو حفاظت او ساتنه یې غایه او هدف وي او د هغې نه بهر د جهاد اراده نه لري؛ نو داسې کس د الله د لارې مجاهد ندی او نه یې هم دغه مبارزه شرعي ده.

### ۳. دریم هدف:

## خلکو ته د سمې لارې هدایت کېدل او حق دعوت ته لاره خلاصېدل:

سمه لار قران او حدیث دی، صفا منهج او صفا عقیده ده، نو تر څو چې خلک په نبوي منهج نوي روان شوی، تر هغه به جهاد جاري وي. جهاد په حقیقي توګه د حق منهج او د هدایت ذریعه ده.

اللهﷻ فرمایي: وَالَّذِينَ جَٰهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا ۚ وَإِنَّ اللَّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ[سُورَةُ العَنكبوت: ٦٩]، **ژباړه:** کوم کسان چې  زموږ په خاطر مجاهده وکړي، هغو ته به موږ خپلې لارې ور وښایو او په باورې ډول الله د نېکوکارانو ملګری دی. په جهاد سره چې څومره خلک اصلاح کېږي هغومره په عام دعوت سره نشي اصلاح کېدای، ځکه چې په حق کې اللهﷻ یو اثر اچولی دی کله چې له مخې څخه خنډونه ختم شي نو په اسانۍ سره زړونو کې ځای نیسي ډېر خلک په لګ وخت کې اصلاح کېږي. خو اوس چې له خلکو څخه حق ورک شوی نو لامل یې دا دی چې د حق دعوت مخې ته ډېر خنډونه ایجاد شوي.

لکه ډیموکراسي ده، وطنیت دی، قومیت دی، سیکولریزم، کمونیزم او نور دعوتونه دي.  حق بیان ته آزادي نشته نو دغه خنډونه په شرعي جهاد سره ختمېږي هغه جهاد چې په نبوي منهج برابر وي.

## ٤. څلورم هدف:

**د پنځو ضرورتونو چې دین، نفس، عزت، عقل او مال دي؛ حفاظت او دفاع کول:**

اللهﷻ فرمایي: وَقَٰتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَٰتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓا ۚ إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ [سُورَةُ البَقَرَة: ١٩٠].. **ژباړه:** او تاسې د الله په لار کې له هغو کسانو سره وجنګېږئ، چې تاسې سره جنګېږي، خو تېری مه کوئ چې الله تېری کوونکي نه خوښوي.

د دغه پنځو ضرورتونو حفاظت له قوت او دولت پرته نشي کېدای او قوت په جهاد سره لاسته راځي. که په دغه ضرورتونو کې د دین حفاظت ته کتنه وکړو، نو دین

په دې سره محفوظ کېږي چې د توحید خلاف ټومره مراکز او عقائد دي، ټول ختم شي، یا د جزیه ورکولو په صورت کې ځینو اصلي کفارو ته محدوده آزادي ورکړی شي، روافضو، سیکولرانو، ملت پاله او وطن پاله خوځښتونو او نورو مرتدینو او حربي کفارو او د هغوی مراکزو ته آزادي ورنکړی شي، بلکې مراکز یې ونړول شي او د دعوت مخنیوی یې وشي، اسلام راوړلو ته مجبور شي یا هم ووژل شي، په همدې سره د دین حفاظت کېږي او همدغه یې شرعي لاره ده چې دا پرته له جهاده نشي کېدای.

که د نفس حفاظت ته کتنه وکړو،نو د نفس حفاظت په شرعي قصاص او حدودو په تنفیذ سره کېږي چې په دې کې هم قوت او شرعي نظام ته اړتیا راځي، هغه چې پرته له جهاده یې امکان نشته او هر چې د عزت حفاظت دی نو دا زاني ته په دورو ورکولو او رجم کولو، د لواطت کار په وژلو، د فحاشی د اسبابو په ختمولو او د نورو اخلاقي مفاسدو په مخنیوي سره کېږي، چې دا هم پرته له جهاده نشي کېدای.

د عقل حفاظت د نشه يي توکو په مخنیوي او مرتکبینو ته یې په سزا ورکولو سره کېږي لکه شراب، نصوار، چرس، افیون او داسې نور، د دې مخه نیول .

او همداراز د مال حفاظت د شرعي غل نه لاس پرېکولو، قطاع طریق ته شرعي سزا ورکولو، او د ظالمانو نه په شرعي محاکمو دائرولو سره د مظلومانو لپاره حق اخستلو سره کېږي؛ خو دا هم قوت ته اړتیا لري چې له جهاد پرته نشي کېدای، نو هر کله چې دغه واجبات له جهاد پرته نشو عملي کېدای او د دغه پنځو ضرورتونو حفاظت نشو کېدای نو لدې وجې دا د جهاد لپاره یو مهم هدف او غایه وګرځېدل.

### ۵. پنځم هدف:

## په څمکه کې د شریعت تمکین ته لاره هوارېدل او د دیني او دنیوي فساد مخنیوی کېدل:

د شریعت تمکین چې د اللهﷻ یو نعمت دی دا هم پرته له جهاده لاسته نشي راتلی مخکې به ترې تکلیفونه ګالې بیا به د دغه نعمت نه برخمن کېږي لکه اللهﷻ په شروع کې د مسلمانانو حال داسې بیان کړی دی فرمایلي دي: وَاذْكُرُوٓا إِذْ أَنتُمْ قَلِيلٌ مُّسْتَضْعَفُونَ فِي الْأَرْضِ تَخَافُونَ أَن يَتَخَطَّفَكُمُ النَّاسُ فَـَٔاوٰىكُمْ وَأَيَّدَكُم بِنَصْرِهِۦ وَرَزَقَكُم مِّنَ الطَّيِّبٰتِ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ [سُورَةُ الأنفَال : ٢٦] **ژباړه:** هغه وخت [در په زړه کړئ] چې کله تاسې لږ وئ، په ځمکه کې تاسې کمزوري ګڼل کېدئ، تاسې وېرېدلئ چې خلک مو له منځه یو نسي. بیا اللهﷻ تاسې ته د پناه ځای برابر کړ، په خپله مرسته یې ستاسې ملا قوي کړه او ښه روزي یې در ورسوله، ښایي چې تاسې شکر ایستونکي اوسئ.

نو اوس هم مجاهدین کم دي، کمزوري دي،د دښمن د بندي کېدلو او نورو تکلیفونو نه وېرېږي او ورسره مخ دي چې دا وېره او تکلیف به یې په جهاد سره پای ته رسي او یوه ورځ به اللهﷻ په دښمن فتحه ورکوي او د پراخه تمکین د نعمت نه به یې برخمن کوي، تمکین د جهاد مهم هدف دی چې په نورو طریقو نشي راتلی.بین الملل ته په سوالونو او زاریو نشي راتلی، په جلوسونو او نورو بې عمله غونډو نشي راتلی، په شرکي وټونو نشي راتلی، بلکې دا زور کارولو ته اړتیا لري، تکلیفونو ګاللو ته اړتیا لري، شرعي جهاد ته اړتیا لري.

## ٦. شپږم هدف:

### دولاء او براء د عقيدې عملي تطبيق کول:

په دې توګه چې د موحدينو سره محبت او مدد کول او د کافرانو سره بغض او دښمني کول، ولاء براء عقيده چې د اسلام يوه بنيادي عقيده ده چې عبارت ده له دې چې د کافر، مشرک او بې دينه سره د الله لپاره بغض او دښمني کول او د مؤمن سره دوستانه اړيکې پالل، محبت او مدد ورسره کول؛ دا پرته له جهاده په کامله توګه نشي تطبيق کېدای، ځکه دا عقيده مونږ نه د دې تقاضا کوي چې مونږ د مظلوم مؤمن عملي مدد وکړو د کفارو د ظلم نه يې راخلاص کړو او د حربي کافر سره عملي سختي وکړو خو چې څوک په وطني او قومي تړو کې راګير وي نو هېڅکله نشي کولی چې د يو بهرني مسلمان مدد وکړي د هغه سره دوستانه اړيکې وپالي، هغه د کفارو له ظلم څخه راخلاص کړي ځکه چې بيا د نړيوالو طاغوتي قوانينو له مخې د پوښتنې لاندې راځي، خو شرعي جهاد بيا داسې نه دی په مصنوعي کرښو، وطني او قومي تړو کې راګير نه دی او نه هم په نړيوالو طاغوتي ميثاقونو کې راګير دی بلکې خپل مقاصد او اهداف لري چې د دغه مقاصدو مخې ته هيڅ خنډ نه مني، اللهﷻ فرمايي: **وَالْمُؤْمِنُونَ وَالْمُؤْمِنَاتُ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَاءُ بَعْضٍ، (سورة التوبة ٧١)** ژباړه: مؤمنان سړي او مؤمنانې ښځې ځيني د ځينو دوستان (مددګاران) دي، شيخ الإسلام ابن تيميةرحمه الله وايي: **«إنّ المؤمنين أولياء الله وبعضهم أولياء بعض، والكفار أعداء الله وأعداء المؤمنين، وقد أوجب الموالاة بين المؤمنين، وبيّن أن ذلك من لوازم الإيمان، ونهى عن موالاة الكفار، وبين أن ذلك منتف في حقّ المؤمنين». الفتاوى (١٩٠/٢٨).**

**ژباړه:** مؤمنان د اللهﷻ دوستان دي او دوی ځيني د ځينو دوستان دي او کافران د الله او د مؤمنانو دښمنان دي، اللهﷻ د مؤمنانو تر منځ دوستانه اړيکي لازمې

کړي دي او دا يې بيان کړې چې دا د ايمان له لوازماتو څخه ده او د کافرانو له دوستانې څخه يې منعه کړې ده او دا خبره يې بيان کړې چې د کفارو سره دوستانه اړيکي به د مؤمنانو په حق کې منتفي وي، يعني مؤمنان به د کافرانو سره دوستانه اړيکي نه پالي.

نو د مؤمنانو به خپل منځ کې دوستانه اړيکې وي چې د يو بل دفاع به کوي، د يو بل مدد به کوي که څه هم وطنونو، قومونو او رنګونو يا ژبو کې بېلتون هم ولري، او دغه موالات به په عملي توګه راښکاره کوي يوازې په لاريونونو، چغو او نعرو به بسنه نه کوي او نه به خلک دغې ته هڅوي بلکې خلک به شرعي جهاد ته هڅوي، د کفارو د ظلم او استبداد په مقابل کې به يې پاڅون ته هڅوي، يوه مقوله مشهوره ده وايي: **لا يفلّ الحديد إلّا الحديد**،اوسپنه به په اوسپنې سره پڅېږي او ماتېږي، نو داسې نشي کېدای چې کفار دې په مسلمانانو بمونه ورو‌ي او مسلمانان دې ورته په لاريونونو، سوالونو،زاريو او غندنو بوخت وي بلکې د اوسپنې مقابله به په اوسپنې سره کوي، خپله اسلامي عقيده او همدردي به راښکاره کوي او د مسلمان نه به د ظلم مخه نيسي .که دا هيڅ نشي کولی نو د کفارو نه به برائت کوي هغوی سره به د مزو او خوندونو په مجلسونو کې نه کيني او نه به ورسره ډپلوماتيکې اړيکې پالي، نه به ورته د سيل او د تفريح ځايونه برابروي، بلکې د دښمن په نظر به ورته ګوري چې دا هم ابراهيمي سنت دي،لکه اللهﷻ مونږ ته د ابراهيم عليه السلام حال داسې رانقل کړی دی فرمايلي دي: **قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيٓ إِبْرَٰهِيمَ وَٱلَّذِينَ مَعَهُۥٓ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُا مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ ٱللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ ٱلْعَدَٰوَةُ وَٱلْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا بِٱللَّهِ وَحْدَهُۥٓ [سُورَةُ المُمتَحنَة : ٤]**-

**ژباړه:** ستاسې لپاره د ابراهيم عليه السلام او د هغه د ملګرو (په کيسه) کې يوه غوره نمونه ده، چې هغوی خپل قوم ته په ډاګه وويل: موږ له تاسې او ستاسې له دغو

معبودانو څخه چې د الله پر ځای یې بندګي کوئ، په ټینګه بېزار یوو. موږ ستاسې څخه منکر شوي یوو او زموږ او ستاسې تر منځ د تل لپاره دښمني او کینه ولویدله، تر څو پورې چې پر یوه الله ایمان رانه وړئ.

نو د ابراهیم عليه السلام په څېر بېزارې به ترې کوي په همدې کې د ایمان او د توحید حفاظت پروت دی، او په همدې سره یې ایمان کمال ته رسېږي او له ډېرو دیني او دنیوي مصیبتونو څخه بچ کېږي، په حدیث کې راځي:

**عن ابي امامة، عن رسول الله ﷺ، انه قال: من احب لله وابغض لله واعطى لله ومنع لله، فقد استكمل الإيمان. رواه أبو داود برقم: (۴٦٨١) -**

**ژباړه:** د ابو امامه رضي الله عنه څخه نقل دي چې هغه یې د رسول الله ﷺ څخه نقلوي چې هغه فرمایي: چا چې د الله لپاره مینه وکړه او د الله لپاره یې کینه وکړه، د الله لپاره یې یو شی ورکړو او د الله لپاره یې منعه کړو نو ایمان یې پوره شو.

او په یو اثر کې دي: **عن ابن عباس قال: من أحب في الله، وأبغض في الله، ووالى في الله، وعادى في الله، فإنما تنال ولاية الله بذلك، ولن يجد عبدٌ طعم الإيمان وإن كثرت صلاته وصومه، حتى يكون كذلك، وقد صارت عامة مؤاخاة الناس على أمر الدنيا، وذلك لا يجدي على أهله شيئاً. رواه ابن جرير وابن المبارك (۳۵۳).**

**ژباړه:** د ابن عباس څخه نقل دي هغه وایي: چا چې د الله لپاره مینه وکړه او د الله لپاره یې کینه وکړه، د الله لپاره یې دوستي وکړه او د الله لپاره یې دښمني وکړه نو په یقیني توګه د الله دوستي په همدې سره لاسته راځي او هېڅکله به یو بنده د ایمان خوند ونه مومي که څه هم مونځونه او روژې یې ډېرې هم وي تر دې چې همداسې شي خو اوس عامې دوستانې د خلکو د دنیا له وجې دي چې دا به ورته هېڅ ګټه ورنکړي.

نو مجاهد ته پکار دي چې د ولاء براء عقیدې په اساس وجنګېږي او په جهاد کې د قوم، نسب او وطن لحاظ ونه ساتي بلکې د اسلامي ورور ولی له مخې مؤمن سره نرمي وکړي که د هر ځای او هر ملک وي او د کافر سره سختي وکړي که د هر ځای او هر ملک وي چې همدا د شرعي جهاد تقاضا ده او همدغه یې مقصود دی.

## ۷.اوم هدف:

### د کمزوره مؤمنانو مدد کول، الله ﷻ فرمایي:

**وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْ هَذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا." سورة النساء ۷۵) .. ژباړه:** آخر څه دلیل دی چې تاسې د الله په لاره کې د هغو بېوسو نارینه و، ښځو او ماشومانو په خاطر نه جنګېږئ چې کمزوري کړای شوي، تر فشار لاندې نېول شویدي او فریادونه کوي چې: «ای زموږ ربه! موږ له دې وطنه چې اوسیدونکي یې ظالمان دي وباسه؛ او له خپل لوري څخه زموږ کوم سرپرست او مرستندوی پیدا کړه.»

د کمزورو مؤمنانو مرسته الله ﷻ په موږ فرض کړې که چېرې په لوېدیځ کې په یو مسلمان ظلم کېږي نو د ختیځ په مسلمانانو یې مرسته لازمه ده او همداسې ددې په برعکس په یو بل یې مرسته لازم ده، بلکې د فقهاو په دې اجماع ده چې کله کافران په یو ځای حمله وکړي نو په نژدې اوسیدونکو یې مرسته لازمه ده که چېرې هغوی ترې عاجز شي نو هغوی ته چې څوک نژدې وي په هغوی یې مرسته لازم ده تر دې چې په دغه ترتیب د نړۍ په ټولو مسلمانانو یې مرسته لازمیږي، شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله وایي:

**وإذا دخل العدو بلاد الإسلام فلا ريب أنه يجب دفعه على الأقرب فالأقرب إذ بلاد الإسلام كلها بمنزلة البلدة الواحدة، وأنه يجب النفير إليه بلا إذن والد ولا غريم، ونصوص أحمد صريحة بهذا وهو خير مما في المختصرات.(٥ /٥٣٩).**

ژباړه: کله چې دښمن د مسلمانانو علاقې ته داخل شي نو پرته له شکه د هغه دفعه کول په نژدې بیا وریسې نژدې خلکو باندې لازم دي، ځکه اسلامي علاقې ټولې د یوې علاقې په څېر دي، نو جهاد ته وتل پرې د پلار او د قرضه وړي له اجازې پرته واجب دی. د امام احمد رحمه الله څرګندونې په دې اړه واضحه دي او دا له هغه څه څخه غوره دي کوم چې د فقهې په مختصرو کتابونو کې ذکر دي. نو د کمزورو مؤمنانو د مرستې لپاره به جهاد کېږي، کمزوري مؤمنان هغه دي کوم چې د کفارو په جیلونو کې پراته دي، یا د کفارو د قانون لاندې اسیر دي په خپل دین باندې د عمل توان نه لري، حق نشي ویلی، هجرت نشي کولی، د خپل ځان، مال، دین او عزت دفاع نشي کولی، په آزاده توګه د الله عزوجل بنده ګي نشي کولی، همدغه کمزوري مؤمنان دي که په هر ځای او هر وطن کې وي د دوی نجات او خلاصون لپاره به جهاد کېږي.

## ۸. اتم هدف:

### کفار اسلام راوړلو یا جزیه ورکولو ته مجبورول، الله عزوجل فرمايي:

**قَٰتِلُوا الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَلَا يُحَرِّمُونَ مَا حَرَّمَ اللَّهُ وَرَسُولُهُ وَلَا يَدِينُونَ دِينَ الْحَقِّ مِنَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَٰبَ حَتَّىٰ يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صَٰغِرُونَ**

[سُورَةُ التَّوبَة : ٢٩] **ژباړه:** د هغو خلکو په خلاف وجنګېږئ چې په الله او په ورځ د اخرت ایمان نه راوړي او څه چې الله او د هغه رسول حرام کړي وي، هغه حرام نه ګڼي او د حق دین تابعداري نه کوي، له هغو کسانو څخه چې کتاب ورته ورکړی شوی دی تر دې چې د ذلت په حال کې په خپل لاس جزیه ورکړي.

اسلام هغه دين دی چې له دې پرته بل دين الله ﷻ ته د منلو وړ نه دی نو ځکه يې په ټولو انسانانو لازم کړی دی او د پيغمبرانو په واسطه يې ورته خلک رابللي دي، منکرينو ته يې د سختو سزاګانو اخطارونه ورکړي دي، جهاد يې ورسره لازم کړی دی، تر دې چې يا اسلام راوړي او يا هم د دنيا او اخرت ذلت ته تيار شي، نو په دنيا کې پرې د شرّ البرية، ناکاره ترين مخلوق حکم کړی دی او د جزيې ورکولو په صورت کې ورته د ژوند حق ورکړی دی نو فرمايلي دي: **حَتّٰى يُعْطُوا الْجِزْيَةَ عَن يَدٍ وَهُمْ صٰغِرُون**، تر دې چې د ذلت په حال کې جزيه ورکړي. له دې وجې اصولينو ويلي دي: **الجهاد دعوة قهرية فتجب إقامته بقدر الإمكان حتى لا يبقى إلا مسلم أو مسالم" (حاشية الشرواني وابن القاسم على تحفة المحتاج على المنهاج [۲۱۳/۹]).**

**ژباړه:** جهاد يو جبري دعوت دی، نو بايد تر هغه وخته پورې ترسره شي تر څو چې يوازې مسلمان يا سوله کوونکي پاتې شي.

نو کوم کافر چې اسلام نه مني د جزيې ترون ته به غاړه ږدي يا بل د امن ترون ته به غاړه ږدي، هغه چې په اسلامي شرطونو برابر وي او د اسلام په ګټه وي، نه هغه ترون چې د کفارو په حمايت او حفاظت بناء وي، د هغوی په مفادو بناء وي، د هغوی سره په کې پټې او ښکاره د اسلام خلاف مادې لاسليک شوې وي. داسې ترون به نه وي ځکه دا په حقيقت کې تسليمي ده، ترون نه دی او نه هم د جهاد دغه مقصد دی چې اخري نتيجه يې تسليمي شي بلکې جهاد يو مقدس عبادت دی چې د دې په وجه به مسلمانانو ته عزت مېلاوېږي او کفار به ذليله کيږي او دې ته به اړ کيږي چې مسلمانانو ته جزيه ورکړي.

## ۹. نهم هدف:

**د کفارو له شر څخه د اسلامي دولت ساتنه کول، که ښکاره دښمن وي او که پټ وي که په داخل کې وي او که په خارج کې وي، مجاهدین به د دې ټولو دښمنانو مقابله کوي.**

د اسلامي دولت د سرحداتو ساتنه به کوي او هم به په داخل کې د امنیت ټینګښت لپاره کار کوي او څوک چې اسلامي دولت ته خطر وي د هغوی د خطر مخه به نیسي لکه نبي عليه السلام چې د کعب بن اشرف یهودي او د ابن ابي الحقیق یهودي په وژلو امر کړی و ځکه چې دا دواړه کسان اسلام ته غټ خطر وو، نو مجاهدین به خپل جهاد ته ادامه ورکوي تر څو اسلامي دولت خوندي شي او د کفارو له شر څخه وساتل شي، د کفارو د فرهنګ، ثقافت یا دود مخنیوی کول چې د اسلامي دولت ساحو ته سرایت ونکړي هم اړین جهاد دی. د کفارو له شر څخه د اسلامي دولت ساتنه په دې طریقه هم کول چې د هغوی د دیني لګکیو په نوم پدېدې له دار الاسلام څخه ویستل یا یې هم اسلام یا جزیه ته مجبورول او داسې یو کافر په دار الاسلام کې نه پرېښودل چې د مسلمانانو سره هېڅ مشروع تړون نه لري په ځانګړي توګه د مرتدینو مخنیوی کول چې هېڅ ډؤل تړون ورسره جائز نه دی، بلکې یا به ایمان راوړي او یا به وژل کېږي، ځکه دا د علماو تر منځ اتفاقي خبره ده چې مرتد به په خپل ارتداد نه پرېښودل کېږي، نو داسې به نه کېږي چې په دار الاسلام کې شیعه رافضي، سیکولر مرتد، وطنپاله او قومپاله مرتدین او یا هم صوفي مشرکینو ته ځای ورکړی شي، بلکې دوی به یا اسلام راوړي او یا به وژل کېږي. صحابه و په دار الاسلام کې مرتد ته ځای نه دی ورکړی او نه یې هم پرته له مشروع تړون کوم اصلي کافر ته د دیني لګکیو په نوم یا په نورو نومونو ځای

ورکړې دی، بلکې د دار الاسلام ساتنه يې کړې ده او دفاع يې ورځخه کړې ده.

نبيعليه‌السلام د دار الاسلام ساتنې ته ډېر ترغيب ورکړی دی فرمايلي دي:

**رِباطُ يَومٍ ولَيْلَةٍ خَيْرٌ مِن صِيامِ شَهْرٍ وقِيامِهِ، وإنْ ماتَ جَرَى عليه عَمَلُهُ الذي كانَ يَعْمَلُهُ، وأُجْرِيَ عليه رِزْقُهُ، وأَمِنَ الفَتّانَ. رواه مسلم رقم الحديث: ۱۹۱۳) ...**

**ژباړه:** يوه شپه او ورځ د اسلام په سرحد کې پېره کول د يوې مياشتې د (نفلي) روژې او قيام الليل نه غوره دي، که چېرې (پېره کوونکی) مجاهد مړ شو نو عمل به يې هماغه شانته جاري وي کوم چې د ځوکی په حال کې کاوه، او جنت نه به ورته رزق ورکول کېږي او د ملائکو له پوښتنې څخه به بچ وي، (يا به ورته پوښتنه کې تکليف نه ورکوي) .

او همداسې په دې معنا نور هم ډېر احاديث شته چې د دار الاسلام ساتنې ته پکې ترغيب راغلی دی. خو که ځوک د دې برعکس دار الکفر ته پېره کوي او د داسې علاقې ساتنه کوي چې په هغه کې هر مرتد، مشرک، او اصلي کافر ته آزادي وي، هر منکر ته آزادي وي، د شريعت احکام پکې ماتېږي او يا هم په نورو سزاګانو بدلېږي نو دغه پېره يې د الله په لاره کې نه ده او نه يې هم د شرعي جهاد دغه مقصد دی چې د دار الکفر دفاع او ساتنه دې وشي.

يعنې موږ بايد لومړی دارالاسلام وپېژنو بيا د هغه ساتنې او پالنې لپاره تيار اوسو ځکه نن سبا عام خلکو ته هغه دارالاسلام ښکاري کوم چې سرحدونه ورته کفارو ټاکلي دي نه داسې ندی دا سيکولر وطني نظامونه او هيوادونه دي چې د اسلامي خاورې په ضد جوړ شوي دي او د دوی ساتنه د کفارو درخواست او د هغوی پلان دی چې مسلمان بايد تينه ځان وساتي او دا کرښې ماتې کړي ترڅو يوه اسلامي خاوره جوړه او اسلامي سرحدات قايم شي.

### ۱۰. لسم هدف:

## د کفارو په زړونو کې وېره او دهشت اچول او د هغوی ذليله کول او غصه کول يې:

اللهﷻ فرمايي: وَأَعِدُّوا لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدُوَّ اللَّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَءَاخَرِينَ مِن دُونِهِمْ لَا تَعْلَمُونَهُمُ اللَّهُ يَعْلَمُهُمْ [سُورَةُ الأنفَال:٦٠] –

**ژباړه:** او تاسې تر خپلې وسې ډېر زيات طاقت او تيار زين کړي اسونه، د هغوی د مقابلې لپاره برابر کړئ، چې په دې وسيله د اللهﷻ پر دښمنانو، ستاسو پر دښمنانو او پر هغو نورو دښمنانو هيبت راولئ، چې تاسې يې نه پېژنئ خو الله يې پېژني. په بل ايت کې اللهﷻفرمايي: قَٰتِلُوهُمْ يُعَذِّبْهُمُ اللَّهُ بِأَيْدِيكُمْ وَيُخْزِهِمْ وَيَنصُرْكُمْ عَلَيْهِمْ وَيَشْفِ صُدُورَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِينَ، وَيُذْهِبْ غَيْظَ قُلُوبِهِمْ، [سُورَةُ التَّوبَة :١٤،١٥] .

ژباړه: له هغو سره وجنګېږئ، الله به ستاسې په لاسونو هغوی ته سزا ورکړي او ذليل او خوار به يې کړي او د هغو په مقابل کې به ستاسې

مرسته وکړي او د ډېرو مؤمنانو زړونه به يخ کړي او د زړونو تاؤ به يې ختم کړي.

او په حديث کې راغلي دي: وَرَجُلٌ آخِذٌ بِرَأْسِ فَرَسِهِ يُخِيفُ الْعَدُوَّ، الحديث (رواه الترمذي رقم: ٢١٠٣) **ژباړه:** او هغه سړی چې د خپل آس سر يې نيولی وي او دښمن ويروي. نو د دښمن ويرول عبادت دی چې دا عبادت په جهاد سره ترسره کېږي او پرته له جهاده يې هېڅ امکان نشته. که څوک دښمن په لاريونونو، نړيوالې طاغوتي محکمې ته په عريضو، په غندنو يا نورو سوله ييزه طريقو سره ويرول غواړي نو هېڅکله به هدف ته ونه رسېږي، بلکې په دغه طريقو سره کافران نور هم زړوريږي او د خپل ظلم او وحشت په کارونو کې زياتوالی راولي، دا ځکه چې دغه يې شرعي حل نه دی شرعي حل يې هغه دی کوم چې الله او د هغه رسولﷺ ښودلی دی چې

د الله په لاره کې هجرت او جهاد کول دي که مسلمانان دغه حل ته رجوع وکړي نو الله به ورته عزت ورکړي، دښمن به ترې د يوې مياشتې په مسافه کې لرې وېرېږي خو چې دغه حل يې پرېښود او نورو غير شرعي طريقو ته يې رجوع وکړه نو د دښمن د زړه نه به رعب ختم شي او داسې به ورباندې راجمعه شي لکه ماتې ډوډۍ ته چې خلک راجمعه کېږي. لکه څنګه چې په حديث کې راځي:

عن ثَوبانَ رضي الله عنه قال: قال رَسولُ اللهِ ﷺ: يوشِكُ الأُمَمُ أن تَداعى علَيكم كما تَداعى الأكَلةُ إلى قَصعَتِها. فقال قائِلٌ: ومِن قِلَّةٍ نَحنُ يومَئِذٍ؟ قال: بل أنتم يومَئِذٍ كثيرٌ، ولكِنَّكم غُثاءٌ كغُثاءِ السَّيلِ! وليَنزِعَنَّ اللهُ مِن صُدورِ عَدوِّكم المَهابةَ مِنكم، وليقذِفَنَّ اللهُ في قُلوبِكم الوَهَنَ.

فقال قائِلٌ: يا رَسولَ اللهِ، وما الوَهَنُ؟ قال: حُبُّ الدُّنيا، وكراهيةُ المَوتِ(رواه أبو داود ۴۲۹۷) واللفظ له: ژباړه: د ثوبان رضي الله عنه څخه نقل دي هغه وايي، رسول الله ﷺ فرمايلي دي: نږدې ده چې د کفارو ډلې به يو بل ستاسو په خلاف راوبلي، لکه څنګه چې د ډوډۍ خوړونکي يو بل کاسې ته رابلي(چې پرته له مانع ترې خوراک کوي نو داسې به تاسو نه هم مال، علاقې او هر څه پرته له مانع او جنګ څخه نيسي) نو يو کس وويل: ايا مونږ به پدغه وخت کې کم يو؟ نبي عليه السلام وفرمايل: بلکې تاسو به په دغه وخت کې ډېر ياست، خو تاسو به هسې د سېلاب د ځګ په څېر ځګ ياست، خامخا به الله عزوجل ستاسو د دښمنانو له زړونو نه، له تاسو څخه وېره ختمه کړي او الله عزوجل به ستاسو په زړونو کې کمزوري واچوي نو يو کس وويل: ای د الله رسول ﷺ! کمزوري څه ده؟ (يعني د کمزورۍ لامل به څه وي؟ ) نبي ﷺ وفرمايل: د دنيا سره مينه او د مرګ بد ګڼل (يعني د دنيا سره مينه او د مرګ بد ګڼل به ستاسو د زړونو د کمزورۍ لامل وي). دې حديث ته علماوو حسن ويلي دي.

نو د دې حديث مصداق اوس موجود شوی دی. کفار په مسلمانانو له هر خوا راجمع شوي دي مستقل ايتلافونه يې جوړ کړي دي چې ډېری اسلام ته منسوب دولتونه او تنظيمونه هم ورسره ولاړ دي، ټولو د شريعت مخه نيولې ده او مسلمانان دې ته نه پرېږدي چې شريعت نافذ کړي، د استضعاف او کمزورۍ حال ته يې رسولي دي، د دې کمزورۍ نه وتل پرته له شرعي جهاد ممکن نه دي، د کفارو زړونو کې رعب او وېره اچول پرته له شرعي جهاده ممکنه نده .

## ۱۱. يوولسم هدف:

### د کفارو نه د مسلمانانو غچ او بدله اخستل، الله ﷻ فرمايي:

فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ- وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ مَعَ الْمُتَّقِينَ [سُورَةُ البَقَرَة: ١٩٤]- **ژباړه:** نو که څوک پر تاسې تېری وکړي، تاسې هم په هماغه ډول پر هغه تېری وکړئ. البته له الله څخه په وېره کې اوسئ او په دې وپوهېږئ چې الله د هغو خلکو ملګری دی چې د هغه د حدودو له ماتولو څخه ډډه کوي.

او په بل ايت کې فرمايي: وَإِنْ عَاقَبْتُمْ فَعَاقِبُوا بِمِثْلِ مَا عُوقِبْتُم بِهِۦ [سُورَةُ النّحل : ١٢٦]

**ژباړه:** که تاسې غچ اخلئ، نو هغومره واخلئ چې څومره پر تاسې تېری شوی وي، دا ايتونه د انتقام اخستلو په مشروعيت دليل دی. همداراز په سيرت کې راځي نبي عليه السلام په شپږم کال د هجرت عمرې لپاره ووتلو نو مشرکانو مکې ته له ننوتلو څخه بند کړو نو نبي ﷺ عثمان رضي الله عنه د سفير په توګه د هغوی خوا ته ولېږو چې د صلحې په اړه يې ورسره خبره کوله نو هغوی عثمان رضي الله عنه هلته ايسار کړو او وخت يې ډېر تير شو چې بل طرف ته يې د وژلو اوازه هم خوره شوه نو نبي عليه السلام صحابه

راجمعه کړل او د ټولو نه يې بيعت واخستو چې دا په اصل کې د عثمانﷺ د انتقام بيعت و الخ.

**الغرض:** دا ټول نصوص په دې دليل دی چې جهاد به د مسلمانانو غچ اخستلو لپاره کېږي خو د مسلمانانو غچ په شرعي جهاد سره اخستل کېږي هغه جهاد چې د کفارو سره په کې هېڅ ډؤل نرمي نوي، د وطني، قومي او پردي کافر تر منځ په کې توپیر نوي، د ملکي او نظامي کافر تر منځ توپیر نوي، د عربي او عجمي توپیر په کې نوي او نه هم د مسلمانانو تر منځ په قوم، وطن او ډلې سره په کې توپیر وي چې د يو بدله اخلي او د بل نه اخلي، بلکې په دې ټولو خبرو کې توپیر يوازې په کفر او اسلام سره وي، داسې جهاد چې کله مسلمانان شروع کړي اسلام ته يې فائده رسېږي، په مسلمانانو باندې راحت راځي، د کفارو نه انتقام اخستل کېږي، د مسلمانانو دولت قائمېږي. خو که چېرې يوه ډله د طواغيتو په جال کې راګېره وي، نو ازاد جهاد نشي کولی، د مسلمانانو او د اسلام نمائندګي نشي کولی يوازې د خپلو افرادو نمايندګي به کوي او هغه هم نيمګړې شانته نمائندګي به وي، د هر طرف نه به وېره لري،د نړيوالو طواغيتو د خفګان او غوصې نه به هم وېرېږي او د محلي طواغيتو د غصې نه به هم وېرېږي، د هغوی معمولي اشارې نه به په لړزان وي او هر وخت به ورته خپل سپيناوی کوي جهاد به ورته يو مصيبت ګرځېدلی وي، پرې تنګ به وي، تپل شوی جنګ به يې بولي د خلاصون لار به نه مومي، نو په داسې جهاد سره د مسلمانانو زړونو ته شفا نه حاصلېږي او نه يې هم د زړونو تاؤ ختمېږي، نه شريعت قائمېږي او نه هم دا شرعي جهاد بلل کېږي.

## ۱۲. دولسم هدف:

### کفارو ته د وعدې ماتولو سزا ورکول، الله ﷻ فرمايي:

وَإِن نَّكَثُوٓا أَيۡمَٰنَهُم مِّنۢ بَعۡدِ عَهۡدِهِمۡ وَطَعَنُوا فِي دِينِكُمۡ فَقَٰتِلُوٓا أَئِمَّةَ ٱلۡكُفۡرِ-إِنَّهُمۡ لَآ أَيۡمَٰنَ لَهُمۡ لَعَلَّهُمۡ يَنتَهُونَ [سُورَةُ التّوبَة: ۱۲] **ژباړه:** او که دوی له ژمنې کولو وروسته بیا خپلې لوړې (قسمونه) ماتې کړي او ستاسې پر دین عیب ویل شروع کړي، نو د کفر له علمبردارانو سره وجنګېږئ؛ ځکه چې د هغوی د لوړو (قسمونو) څه اعتبار نشته، ښايي چې هغوی منع شي.

همدا راز الله ﷻ هغه چا ته شپږ زیري په وروسته ایت کې ورکړي دي چې د لوظ ماتوونکو کفارو سره جنګېږي نو فرمايلي دي:

قَٰتِلُوهُمۡ يُعَذِّبۡهُمُ ٱللَّهُ بِأَيۡدِيكُمۡ وَيُخۡزِهِمۡ وَيَنصُرۡكُمۡ عَلَيۡهِمۡ وَيَشۡفِ صُدُورَ قَوۡمٖ مُّؤۡمِنِينَ؛ وَيُذۡهِبۡ غَيۡظَ قُلُوبِهِمۡۗ وَيَتُوبُ ٱللَّهُ عَلَىٰ مَن يَشَآءُۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٌ [سُورَةُ التّوبَة: ۱۵،۱٤] **ژباړه:** له هغو سره وجنګېږئ؛ الله به ستاسې په لاسونو هغوی ته سزا ورکړي، او ذلیل او خوار به یې کړي، او د هغو په مقابل کې به ستاسې مرسته وکړي او د ډېرو مؤمنانو زړونه به یخ کړي، او د زړونو تاؤ به یې ختم کړي، او چا ته یې چې خوښه شي د توبې توفیق به هم ورکړي، الله په هر څه پوهېدونکی، د حکمت والا دی.

همداراز د مکې د فتحې غزوه هم د مشرکانو د صلحې ماتولو په نتیجه کې رامنځته شوه چې کیسه یې مشهوره ده، بنو قینقاع او بنو نضیر سره هم د امن صلحه شوې وه خو کله چې یې صلحه ماته کړه نبي ﷺ پرې غزا وکړه محاصره یې کړل او بیا یې د مدینې نه وشړل، او بنو قریظه و ته یې د صلحې ماتولو ډېره سخته سزا ورکړه چې زنانه او ماشومان یې ورله وینځې او غلامان کړل او سړي یې ورله ووژل. د صلحې ماتولو سزا باید همداسې وي. او داسې به نه وي چې یو کرت صلحه وکړي

او بیا په کروزونو هم نه ماتیږي، د مسلمانانو په بندي کولو، بې عزته کولو، د اسلامي شعائرو په سپکاوي، د حربي کفارو سره په مرسته او نورو نواقضو نه ماتیږي، نا بلکې صلحه خپل شرعي اصول او شرطونه لري کله چې کفار د هغې خلاف وکړي بیا ورسره صلحه ماتیږي، او له هغې وروسته دغه کافر ته معاهد نه ویل کیږي بلکې د حربي کافر نوم ورته کارول کیږي چې د صلحې ماتولو سزا به ورته ورکول کیږي، او داسې به نه وي چې د صلحې ماتولو نه وروسته بیا هم ورته په زاریو او سوالونو بوخت وي، د ډالري کځوړو او د رسمیت پیژندنې په غوښتلو بوخت وي، نړیوالې محکمې او د امنیت شورا ته په سپیناوي، عریضو او سپارښتنو بوخت وي، داسې صلحه د اول نه شرعي صلحه نه بلل کیږي چې ماتېدل یې امکان نه لري بلکې دا تسلیمي او کفارو سره یارانه او دوستي بلل کیږي خو د دې په عکس کومه صلحه چې د شریعت د اصولو او شرطونو په رڼا کې شوې وي کله چې هغه ماته شي نو له هغې وروسته به د کافرانو نه بېزاري کیږي او د جنګ اعلان به ورسره کیږي، د جهاد یو هدف همدغه دی چې کفارو ته د صلحې ماتولو سزا ورکړل شي. دا سزا ورته په سوالونو او زاریو نه ورکول کیږي او نه هم په نورو غیر شرعي طریقو سره ورکول کیږي بلکې په شرعي جهاد سره ورکول کیږي.

### ۱۳. دیارلسم هدف:

## د مسلمانانو ځمکه د کفارو له ولکې آزادول او د اسلام سیادت (مشرۍ) ته یې راګرځول:

الله ﷻ فرمایي: وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ وَأَخْرِجُوهُم مِّنْ حَيْثُ أَخْرَجُوكُمْ (سُورَةُ البَقَرَة: ۱۹۱) ژباړه: له هغو (کفارو) سره هر چیرې چې مخامخ شئ وجنګېږئ، هغوی له هغه ځایه څخه وباسئ له کوم ځای څخه چې یې تاسې ایستلي یاست.

د مکې د فتحې په اسبابو کې د صلحې ماتولو تر څنګ يو سبب همدا و چې هغوی مؤمنان له خپلې علاقې څخه شړلي وو نو الله ورته دغه امر وکړ، او په سورة بقرة کې د طالوتيانو د جهاد لامل همدا بيان شوی چې هغوی له خپلې علاقې څخه ايستل شوي وو الله ﷻ د هغوی خبره رانقل کړې فرمايي:

قَالُوا وَمَا لَنَآ أَلَّا نُقَٰتِلَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَقَدْ أُخْرِجْنَا مِن دِيٰرِنَا وَأَبْنَآئِنَا [سُورَةُ البَقَرَة : ٢٤٦]

**ژباړه:** هغوی وويل: زمونږ څه عذر دی چې د الله په لاره کې جنګ نه کوو په داسې حال کې چې مونږ د خپلو کورونو څخه ايستل شوي يو او زمونږ اهل او عيال له مونږ څخه بېل کړی شوی دی.

نو د مسلمانانو ځمکه که يوه لويشت هم کفارو اشغال کړې وي آزادول يې د ټولو مسلمانانو وظيفه ده او تر څو چې دغه اشغال شوې ځمکه اسلامي سيادت ته نوي راګرځول شوې تر هغه به جهاد فرض عين وي. د شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله قول مخکې ذکر شو چې هغه وايي:

وإذا دخل العدو بلاد الإسلام فلا ريب أنه يجب دفعه على الأقرب فالأقرب إذ بلاد الإسلام كلها بمنزلة البلدة الواحدة، وأنه يجب النفير إليه بلا إذن والد ولا غريم، ونصوص أحمد صريحة بهذا وهو خير مما في المختصرات.(٥ /٥٣٩).

**ژباړه:** کله چې دښمن د مسلمانانو علاقې ته داخل شي نو پرته له شکه د هغه دفعه کول په نژدې بيا ورپسې نژدې خلکو باندې لازم دي ځکه اسلامي علاقې ټولې د يوې علاقې په څېر دي، نو جهاد ته وتل پرې د پلار او د قرضه وړي له اجازې پرته واجب دي د امام احمد رحمه الله څرګندونې په دې اړه واضحه دي او دا له هغه څه څخه غوره دي کوم چې د فقهې په مختصرو کتابونو کې ذکر دي.

نو اسلامي ځمکه ټوله يوه بلل کېږي او په دې به څوک ځان ته دوکه نه ورکوي چې مونږ خو خپله علاقه يا ملک ظاهرا له کفارو څخه آزاد کړ او په مونږ نور جهاد

نشته، نا بلکې جهاد به تر هغه فرض عين وي تر څو چې د مسلمانانو ټوله ځمکه د کفارو له اشغال څخه آزاده شي او دغه فرضيت اول نژدې خلکو ته او بيا ورپسې نژدې ته متوجې دی تر دې چې په دغه ترتيب د ټولې نړۍ مسلمانانو ته فرضيت متوجې کيږي او دا هيڅ آزادي نه ده چې په اسلامي علاقو کفار واکمن وي، د هغوی قانون پرې واکمن وي، د مسلمانانو نه د کفارو جيلونه ډک وي، اسلامي ځمکه دې اشغال وي، فضا يې اشغال وي، د مسلمانانو اقتصاد اشغال وي، فرهنګ او ثقافت يې اشغال وي، په آزاده توګه په اسلام عمل نشي کولی خو بيا هم ځينې اسلام ته منسوبې ډلې يا دولتونه خپله آزادي لمانځي او ځانونه د نړۍ ستر فاتحين ګڼي. دا د کفارو په خوښه او د هغوی له خوا تصويب شوې او تعريف شوې محدوده آزادي ده. حقيقي آزادي داسې نه وي او نه هم په شرعي جهاد سره دغه ډول آزادي مطلوب ده.

## څوارلسم هدف:

### له مسلمانانو څخه د کفارو د ظلم مخه نيول:

اللهﷻفرمايي:وَقَٰتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يُقَٰتِلُونَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوٓا۟- إِنَّ اللَّهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِينَ[سُورَةُ البَقَرَة: ١٩٠] **ژباړه:** او تاسې د الله په لار کې له هغو کسانو سره وجنګيږئ، چې تاسې سره جنګيږي، خو تيری مه کوئ چې الله تيری کوونکي نه خوښوي.

او په بل ايت کې فرمايي: أَلَا تُقَٰتِلُونَ قَوْمًا نَّكَثُوٓا أَيْمَٰنَهُمْ وَهَمُّوا بِإِخْرَاجِ الرَّسُولِ وَهُم بَدَءُوكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ- أَتَخْشَوْنَهُمْ- فَاللَّهُ أَحَقُّ أَن تَخْشَوْهُ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ [سُورَةُ التّوبَة: ١٣]

**ژباړه:** ايا تاسې ولې له داسې خلکو سره نه جنګيږئ چې خپل تړونونه ماتوي او له وطن څخه يې د پيغمبر د ايستلو قصد کړی ؤ او هم هغوی لومړی په تيري لاس

پورې کوونکي ول- آيا تاسې له هغو څخه وېرېږئ؟ الله د دې ښه حقدار دی چې ورڅخه ووېرېږئ، که تاسې مؤمنان یاست.

اسلامي اخوت له مونږ څخه دا تقاضا کوي چې د خپل مسلمان ورور نه د ظلم مخنيوی وکړو او کفارو ته يې ځانله پرې نږدو بلکې د مسلمان سره په هر تکليف کې اوږه په اوږه ودريږو لکه په حديث کې راځي نبيﷺ فرمايي:

المسلمُ أخو المسلمِ لا يظلِمُه ولا يُسلِمُه مَن كان في حاجةِ أخيه كان اللهُ في حاجتِه ومَن فرَّج عن مسلمٍ كُربةً فرَّج اللهُ بها عنه كربةً مِن كُرَبِ يومِ القيامةِ ومَن ستَرَ مسلمًا ستَره اللهُ يومَ القيامةِرواه مسلم برقم: ٢٥٨٠ ـ

**ژباړه:** مسلمان د مسلمان ورور دی ظلم به پرې نه کوي، او نه به يې بل چا ته پرېږدي چې ظلم پرې وکړي، څوک چې د خپل مسلمان ورور حاجت پوره کولو کې مرسته کوي الله به د ده حاجت پوره کړي او چا چې د يو مسلمان نه تکليف لرې کړو الله به له ده څخه د دغې په وجه د قيامت له تکليفونو څخه يو تکليف لرې کړي او چا چې په مسلمان پرده راواچوله الله به په ده د قيامت په ورځ پرده را واچوي .

نو دا حديث په دې دليل دی چې مسلمان به د کفارو ظلم ته نه پريښودل کېږي بلکې د هغه مرسته به کېږي د هغه د عزت، ځان او مال دفاع به يې کېږي. او په بل حديث کې راځي:

عن جابر وأبي أيوب الأنصاري قالا: قال رسول اللهﷺ : «ما من امرئ يخذل مسلما في موطن ينتقص فيه من عرضه وينتهك فيه من حرمته إلا خذله الله في موطن يحب فيه نصرته. وما من امرئ ينصر مسلما في موطن ينتقص فيه من عرضه وينتهك فيه من حرمته إلا نصره الله في موطن يحب فيه نصرته» . رواه الطبراني في الأوسط، وإسناده حسن. مجمع الزوائد ومنبع الفوائد ٢٦٧/٧)

ژباړه: د جابر او ابو ایوب الانصاري څخه نقل دي دوی وایي رسول اللهﷺ فرمایلي دي: نشته یو سړی چې د یو مسلمان مرسته په داسې ځای کې پرېږدي چې هلته د هغه بې عزتي کېږي مگر اللهﷻ به د ده مرسته په داسې ځای کې پرېږدي چې هلته به دا د الله ﷻ په مرسته خوښوي او نشته یو سړی چې د یو مسلمان مرسته وکړي په داسې ځای کې چې هلته د هغه بې عزتي کېږي مگر اللهﷻ به د ده مرسته وکړي په داسې ځای کې چې هلته به دا د اللهﷻ مرسته خوښوي. مجمع الزوائد والا دې حدیث ته حسن ویلي دي. نو په دې حدیث کې ډېر سخت اخطار هغه چا ته ورکړل شوی چې څوک د مظلوم مسلمان مرسته پرېږدي داسې خلک به د الله د مرستې نه محروم وي او همدا لامل دی چې نن مسلمانان په ډول ډول تکلیفونو او مصیبتونو کې اخته دي. د اللهﷻ د مرستې نه محروم دي. د غلامۍ ژوند تېروي. په خپل ملک او خپل مال کې هم ورته آزادي نشته، دا ځکه چې دوی د مظلومو مسلمانانو مرسته پریښې، د هغوی د نجات او خلاصون لپاره کوم فکر نه لري. که چېرې د نړۍ مسلمانان په دې احادیثو عمل وکړي او د مظلومانو مرستې لپاره راپاڅېږي نو ډېر ژر به له دوی څخه د ذلت څادر ټول شي او د عزت خاوندان به شي ان شاء الله، خو دا چې یو جماعت یا دولت د مرستې دائره محدوده کړي او یوازې د خپل وطن، قوم یا ډلې تر وګړو یې رابنده کړي او د خپلې مبارزې هدف همدغه وګرځوي نو دا شرعي جهاد نه دی.

**الغرض:** د دې ټول بحث نه مونږ ته دا نتیجه په لاس راځي چې شرعي جهاد هغه ته وایي چې د ذکر شویو اهدافو لپاره ترسره شي او نور هېڅ غیر مشروع اهداف پکې نوي، کله چې داسې جهاد د الله په ځمکه شروع شي نو مثبته نتیجه یې حتمي او یقیني وي که څه هم لږ وخت وروسته هم وي. دا خو د شرعي جهاد د اهدافو خبره وه، اوس د شرعي جهاد ضوابطو او اصولو ته کتنه کوو نو وایو:

# د شرعي جهاد ضوابط او اصول!

جهاد چې يو اوچت عمل دی هله به د قبلېدلو وړ ګرځي چې کله يې د اصولو او شرائطو لحاظ وشي چې د ځينو يادونه دلته کوو:

## ۱) اول اصل:

### جهاد به په اخلاص او د نبيﷺ په تابعدارۍ کې ترسره کېږي:

دا هغه اصل دی چې له دې پرته يو نېک عمل هم نه قبلېږي، چا چې په جهاد کې نيت خالص نه کړ اجر يې نشته او همداراز که د نبي عليه السلام په طريقه يې جهاد ونکړ هم يې اجر نشته، اللهﷻ فرمايي: فَمَن كَانَ يَرْجُوا لِقَآءَ رَبِّهِۦ فَلْيَعْمَلْ عَمَلًا صَٰلِحًا وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِۦٓ أَحَدًا [سُورَةُ الكهف: ۱۱۰].. **ژباړه:** څوک چې له خپل رب سره د يو ځای کېدو په هيله وي، هغه ته په کار ده چې ښه عمل وکړي او په بندګۍ کې دې له خپل رب سره بل څوک شريک نکړي. نو په دې ايت کې دا دواړه خبرې راجمعه دي اخلاص او د نبي عليه السلام تابعداري دواړه په کې ذکر دي او دا دواړه خبرې د نېک عمل قبلېدو لپاره شرط شوي دي، او په حديث کې راځي:

عَنْ أَبِي أُمَامَةَ الْبَاهِلِيِّ رضي الله عنه قَالَ: جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ ﷺ، فَقَالَ: أَرَأَيْتَ رَجُلًا غَزَا يَلْتَمِسُ الْأَجْرَ وَالذِّكْرَ، مَا لَهُ؟ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ : «لَا شَيْءَ لَهُ» فَأَعَادَهَا ثَلَاثَ مَرَّاتٍ، يَقُولُ لَهُ رَسُولُ اللَّهِﷺ :«لَا شَيْءَ لَهُ» ثُمَّ قَالَ: «إِنَّ اللَّهَ لَا يَقْبَلُ مِنَ الْعَمَلِ إِلَّا مَا كَانَ لَهُ خَالِصًا، وَابْتُغِيَ بِهِ وَجْهُهُ» [صحيح، رواه النسائي- ۳۱۴۰].

ژباړه: له ابو امامة الباهلي رضي الله عنه څخه روايت دی وايي چې: رسول اللهﷺ ته يو سړی راغی او ورته يې وويل چې د هغه چا په اړه خبر راکړه چې جهاد ته د ثواب او ستاينې لپاره وځي، آيا اجر ورته شته؟

نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: «هېڅ شی ورته نشته» (هغه سړي دا پوښتنه) درې ځلې تکرار کړه، او رسول الله ﷺ ورته ويل چې «هېڅ شی ورته نشته» بيا يې وويل: « بېشکه چې الله ﷻ هيڅ عمل نه قبلوي، مگر هغه چې خاص د هغه لپاره وي او د هغه رضا پرې غوښتل شوې وي» په بل حديث کې راځي نبي ﷺ فرمايي: من عمل عملًا ليس عليه أمرنا فهو رَدٌّ أخرجه البخاري (٢٦٩٧). **ژباړه:** چا چې داسې يو عمل وکړ چې زمونږ امر ورباندې نه و نو هغه به مردود وي. په دې اړه نور هم ډېر دلايل شتون لري. نو مجاهد ته پکار دي چې په جهاد کې خپل نيت خالص کړي، د رياکارۍ، د خلکو د ستاينې، د دنياوي مفادو، مال متاع لپاره جهاد ونکړي بلکې يوازې د الله رضا لپاره يې وکړي او د نبي ﷺ په طريقه يې وکړي، له چا سره چې نبي ﷺ سختي کړې وي د هغه سره سختي وکړي او د چا سره چې نرمي کړې وي د هغه سره نرمي وکړي او د جهاد په ټولو ابوابو او تکتيکونو کې د نبي ﷺ کامله تابعداري وکړي.

## ٢) دويم اصل:

**جهاد به د هغه مشروع اهدافو لپاره ترسره کېږي کوم چې مخکې ذکر شول او تر څو چې دغه اهداف لاس ته نه وي راوړي؛ تر هغه به له خپلې مبارزې څخه نه شاته کېږي، چې تر ټولو ستر هدف يې د الله کلمه لوړول دي:**

لکه په حديث د ابو موسى کې ذکر شول يو سړي د نبي ﷺ نه پوښتنه وکړه ويې ويل: الرَّجُلُ : يُقَاتِلُ لِلْمَغْنَمِ وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِلذِّكْرِ، وَالرَّجُلُ يُقَاتِلُ لِيُرَى مَكَانُهُ فَمَنْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ ؟ قَالَ: " مَنْ قَاتَلَ لِتَكُونَ كَلِمَةُ اللَّهِ هِيَ الْعُلْيَا فَهُوَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ " (رواه البخاري)

**ژباړه:** یو سړی د غنیمت لپاره جنګیږي، یو سړی د یاد (ستاینې) لپاره جنګیږي، یو سړی د دې لپاره جنګیږي چې مرتبه یې راښکاره شي نو په دوی کې څوک د الله په لاره کې دی؟ نبي ﷺ ورته وفرمایل: څوک چې دې لپاره جنګیږي چې د الله کلمه لوړه شي نو هغه د الله په لاره کې دی. نو هر عمل خپل اهداف لري خو د جهاد اهداف بیا ډېر ستر او عالي دي، مجاهد باید دغه اهداف په ذهن کې ونیسي او د دې د تر لاسه کولو لپاره وجنګیږي. د دغه اهدافو مخې ته چې هر شی خنډ ګرځي که دنیا وي که مال وي که تجارت، که نور خواهشات او شهوات وي، د دې ټولو سره کلکه مبارزه وکړي. خو چې دغه اهداف له لاسه ورنکړي، او نه هم ورڅخه وروسته شي، ځکه د دغه اهدافو نه وروسته کېدل د جهاد پرېښودلو او د تسلیمۍ په معنا دي. کفار د خپل غیر مشروع اهدافو لپاره څومره قربانۍ ورکوي، څومره تکلیفونه تېروي،په کلونو کلونو مسافري کوي، خو مسلمان د خپل دین لپاره قربانۍ ته نه تیاریږي، د خپل کلي او علاقې پرېښودلو ته نه تیارېږي، نو ځکه خو نن د ذلت سره مخ دی، د طاغوتي قانون اسیر دی، دیني او دنیاوي آزادي ورڅخه سلب شوې، ټول اختیارات ورڅخه سلب شوي، د ویرې او د ډار ژوند تېروي، دا د دې حدیث مصداق دی چې نبي ﷺ فرمایې: «إِذَا تَبَايَعْتُمْ بِالْعِينَةِ، وَأَخَذْتُمْ أَذْنَابَ الْبَقَرِ، وَرَضِيتُمْ بِالزَّرْعِ، وَتَرَكْتُمُ الْجِهَادَ، سَلَّطَ اللَّهُ عَلَيْكُمْ ذُلًّا لَا يَنْزِعُهُ حَتَّى تَرْجِعُوا إِلَى دِينِكُمْ». [ حديث حسن] [رواه أبو داود: ٣٤٦٢] **ژباړه:** کله چې تاسو سودي معاملات د ځینو حیلو په کارولو سره شروع کړئ او د غواګانو لکۍ ونیسئ او په کروندو خوښ شئ او جهاد پرېږدئ نو الله ﷻ به په تاسو ذلت راولېږي چې تر هغه به یې درنه لرې نکړي تر څو چې تاسو خپل دین ته نه یاست راګرځېدلي.

**نو باید چې مجاهد یوه لمحه هم خپل هدف له لاسه ورنکړي بلکې شپه او ورځ یې د لاسته راوړلو کوښښ وکړي.**

## ۳) دريم اصل:

### جهاد به د ديني علم او پوهې په رڼا کې ترسره کېږي:

دا ځکه چې جهاد يو اوچت عبادت دى او عبادت پرته له پوهې، نه صحيح کېږي له دې وجې خو عمر بن عبد العزيز رَحِمَهُ ٱللَّهُ ويلي دي: مَنْ عَمِلَ بِغَيْرِ عِلْمٍ كَانَ مَا يُفْسِدُ أَكْثَرَ مِمَّا يُصْلِحُ » الزهد للإمام أحمد (۱/۳۰۱) **ژباړه:** چا چې پرته له علم عمل وکړو فساد به يې له اصلاح څخه ډېر وي.

نو د جهاد له حقيقت، مقاصدو او ډؤلونو څخه ځان خبرول او هم د هغه چا له حکم څخه ځان خبرول ضروري دي د چا سره چې جنګېږي، شيخ الاسلام ابن تيميه رَحِمَهُ ٱللَّهُ ويلي دي: الواجب أن يُعتبر في أمور الجهاد برأي أهل الدين الصحيح، الذين لهم خبرة بما عليه أهل الدنيا، دون أهل الدنيا الذين يغلب عليهم النظر في ظاهر الدين؛ فلا يؤخذ برأيهم ولا برأي أهل الدين الذين لا خبرة لهم في الدنيا، (الاختيارات الفقهية، ص ۳۱۱):

**ژباړه:** د جهاد په کارونو کې د صحيح ديندارو خلکو راى ته اعتبار ورکول واجب دي. هغه کسان چې د دنياوالو له حال څخه خبر وي، نه د هغو دنياوالو راى ته اعتبار ورکول چې د دين په ظاهري کارونو کې کتنه وربانديې غالبه شوي وي نو له هغوى څخه به راى نه اخيستل کېږي او نه به له هغو ديندارو څخه راى اخيستل کېږي چې د دنيا په کارونو پوهه نه لري يعني د دنياوالو له حال څخه خبر نه لري. نو کوم جهاد چې د علم او د پوهې په رڼا کې ترسره شي، ښه نتيجه ورکوي، خو کوم چې د جهل او ناپوهی په تورتم کې ترسره شي، چې د خپلې عقيدې نه خبر نه وي، د جهاد د اهدافو نه خبر نه وي، حقيقي دوست او دښمن نه پېژني او نه هم د دوستی او دښمنی معيار پېژني نو د داسې خلکو جهاد هېڅ نتيجه نه ورکوي ځکه داسې خلک ډېر ژر دوکه کېږي او د دښمن د چل او دوکې ښکار کېږي، دښمن يې

په لږ مال او متاع راضي کوي او خپلې غوښتنې ورباندې مني. نو مجاهد بايد د راسخې عقيدې والا وي، صحيح علم او پوهه لرونکی وي، د دښمن له چل او فريب څخه خبر وي. د هغوی د پليتې عقيدې او فساد نه خبر وي.

## ٤) څلورم اصل:

## جهاد کې له عدل څخه کار اخستل او له ظلم او زياتي څخه ځان ساتل:

نو په شريعت کې چې د کوم کافر له وژلو څخه منعه راغلې ده د هغوی له وژلو څخه ډډه کول لکه د اصلي کافرو ماشوم، ښځه، شېخ فاني، ړوند، لېونی، راهب او په دائمي مرض اخته کس، له دوی سره کار نه لرل خو په دې شرط چې د مسلمانانو په جنگ کې يې نه عملي او نه هم د رای په کارولو سره برخه اخيستې وي. او همدا راز د مرتدينو د لېوني او ماشوم له وژلو څخه ډډه کول، او کوم کفار چې د اسلام حکم ته غاړه کېږدي هغوی ته خپل شرعي حقونه ورکول، ښه گاونډ او اخلاق ورسره کول د خلکو د ظلم نه يې ساتل او د هر چا سره د عدل په اساس چلند کول، الله ﷻ مونږ ته په عدل امر کړی دی فرمايلي دي: وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَـَٔانُ قَوْمٍ عَلَىٰٓ أَلَّا تَعْدِلُوا۟ ۚ ٱعْدِلُوا۟ هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ[سُورَةُ المَائدة : ٨] - **ژباړه:** د کومې ډلې دښمني دې تاسې دومره را و نه پاروي چې له عدالت څخه واوړئ.عدالت وکړئ، دا له پرهيزگارۍ سره نژدې اړيکه لري.

او نبي عليه السلام مونږ ته د عدل عملي نمونې پرېښې دي، کله چې به يې جنگ ته يو لښکر لېږلو نو د پرهېزگارۍ امر به يې ورته کاوه او داسې به يې ورته فرمايل:

سِيرُوا بِاسْمِ اللَّهِ وَفِي سَبِيلِ اللَّهِ، قَاتِلُوا مَنْ كَفَرَ بِاللَّهِ، وَلَا تَمَثِّلُوا، وَلَا تَغْدِرُوا، وَلَا تَغُلُّوا، وَلَا تَقْتُلُوا وَلِيدًا " ( رواه ابن ماجه رقم الحديث: ٢٨٥٢) **ژباړه:** د الله نه په مرسته غوښتلو سره د الله په لاره کې روان شئ د هغه چا سره وجنگېږئ چې په الله يې کفر کړی وي او د کفارو مړي مه بدرنگوئ، دوکه مکوئ (چې د معاهدو کفارو سره

وعده ماته کړئ )، د غنیمت په مال کې خیانت مکوئ او ماشوم ورله مه وژنئ.

او داسې نورې ډېرې نمونې د عدل په باب کې شته.

شیخ الاسلام ابن تیمیهرحمه‌الله د عدل په باب کې یو ناشنا قول رانقل کړی دی هغه ویلي دي: الله ینصر الدولة العادلة وإن کانت کافرة ولا ینصر الدولة الظالمة وإن کانت مؤمنة (مجموع الفتاوی ۲۸/۶۳) - **ژباړه:** الله د عدل کوونکي دولت سره مدد کوي، ولو که د کافرانو دولت هم وي خو د ظالمانو له دولت سره مدد نکوي که څه هم هغه د مؤمنانو دولت هم وي. نو مجاهد ته پکار دي چې د عدل نه کار واخلي، جهاد یوازې د سختۍ نوم نه دی بلکې دا د ټول کائنات لپاره یو رحمت دی او د خلکو د هدایت لامل دی لکه په حدیث کې راغلي دي:

عن أبي هريرة رضي‌الله‌عنه: كُنْتُمْ خَيْرَ أُمَّةٍ أُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ [آل عمران:۱۱۰] قَالَ: خَيْرُ النَّاسِ لِلنَّاسِ يَأْتُونَ بِهِمْ في السَّلاسِلِ فِي أعْنَاقِهِمْ حَتَّى يَدْخُلُوا فِي الإِسْلامِ. وعنه أيضا رضي‌الله‌عنه عن النبيﷺ قال:«عَجِبَ اللهعزوجل مِنْ قوم يَدْخُلُونَ الجنة في السَّلاسِلِ». (رواهُما البُخاري) **ژباړه:** ابوهریرهرضي‌الله‌عنه د دې آیت په اړه وفرمایل: [تاسو تر ټولو غوره امت یاست چې د خلکو د فائدې لپاره راویستل شوي یاست] هغه وفرمایل: د خلکو لپاره غوره خلک دي چې خلک په غاړو کې زنځیر کړي راولي تر دې چې په اسلام کې داخل شي، او همدا راز له همده ابوهریرة رضي‌الله‌عنه څخه نقل دي چې له نبيعليه‌السلام څخه یې نقلوي هغه فرمایلي دي: اللهعزوجل له هغو خلکو څخه تعجب کوي چې جنت ته به په زنځیرونو کې داخلیږي.

نو جهاد د حق دین د خپراوي غټ لامل دی،څوک دې ترې یوازې د سختۍ معنا نه فهموي چې ظلم، زیاتي او بې عدلۍ ته لاس واچوي، بلکې له عدل څخه دې کار واخلي. هغه عدل چې الله او د هغه رسول مونږ ته راښودلی دی. د هغې په اساس دې خلکو سره چلند وکړي او د همدغه عدل د خپراوي کوښښ دې وکړي څوک چې

د دغه عدل مخنیوی کوي، د هغوی سره دې سختي وکړي او څوک چې ملاتړ کوي او د خپل ضد او عناد څخه لاس اخلي د هغوی سره دې نرمي وکړي. ځکه د عدل اساس او سرچینه کتاب او سنت دي. د انسانانو جوړ کړي قوانین نه دي چې په دې سره د عدل او د ظلم تول وشي، دېکې خو د الله قانون ته د ظلم نسبت کېږي العیاذ بالله ـ د اللهﷻ دوستانو ته ترهګر او نور شنیع القاب کارول کېږي، دا خو د همدې کفارو جوړ کړي قوانین دي چې د اسلام د ختمولو لپاره یې راویستي دي، نا بلکې عدل باید له قران او حدیث څخه زده شي او د الله په ځمکه تطبیق شي.

## ٥) پنځم اصل:

## جهاد به د شرعي خلیفه تر مشرۍ لاندې کېږي، برابره ده که خلیفه نېک وي او که فاجر یا ظالم وي:

شرعي خلیفه هغه ته وایي چې ټاکنه یې په یو د دوه طریقو سره شوې وي چې د خلافت راوستلو اصلي او اجماعي طریقې دي او هغه دا چې اهل الحل والعقد شورا ټاکلی وي، یا د مخکني خلیفه په وصیت ټاکل شوی وي.

او دریمه طریقه یې هم شته چې اجماعي ده خو په ځینو خاصو حالاتو کې ده له ابتداء څخه ورباندې امر نه دی شوی او نه هم د خلافت راوستلو اصلي لاره ده او هغه دا چې یو مسلمان امیر په زور او غلبې سره په یو ځای ولکه تر لاسه کړي او د خلافت اعلان وکړي چې د دې لپاره یوازې اسلام شرط دی او له دې پرته د ځینو نورو شرطونو شتون ورله لازم نه دی خو کوم خلیفه چې د اهل الحل والعقد شورا په انتخاب سره ټاکل شوی وي او یا هم د مخکني خلیفه په وصیت ټاکل شوی وي نو په هغه کې د را روانو شرطونو شتون لازم دی چې دغه شرطونه امام بدر الدین ابن جماعة په لنډه توګه راوړي دي هغه ویلي دي:

أن يكون الإمام ذكرا، حرا ،بالغا ،عاقلا ،مسلما، عدلا، شجاعا، قرشيا، عالما، كافيا لما يتولاه من سياسة الأمة ومصالحها . ا.هـ (تحرير الأحكام في تدبير أهل الإسلام ٥١).

**ژباړه:** امام بايد نارينه، آزاد، بالغ، عاقل، مسلمان، عادل، زړور، قريشي، پوه او د ملت د سياست او ګټو لپاره كافي وي.

د امير په تابعدارئ اللهﷻ امر كړی دی چې دا هم په دې دليل دی چې جهاد به د امير په مشرۍ كې كيږي اللهﷻ فرمايي: يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلْأَمْرِ مِنكُمْۖ فَإِن تَنَٰزَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلْيَوْمِ ٱلْأخِرِۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا [سُورَةُ النِّسَاء: ٥٩]-

**ژباړه:** اې مؤمنانو! د الله، رسول او هغو كسانو اطاعت وكړئ چې ستاسې څخه د امر خاوندان وي، بيا كه ستاسې تر منځ په كومه چاره كې شخړه پيښه شي، نو هغه د الله او رسول لوري ته محوله (وړاندې) كړئ. كه تاسې په رښتيا سره پر الله او د اخرت په ورځ ايمان لرئ، همدا د كار يوه سمه طريقه ده او د عاقبت په اعتبار هم غوره ده. امام ابن كثير د دې ايت په شرحه كې وايي:

الظاهر- والله أعلم - أن الأية عامة في جميع أولي الأمر من الأمراء والعلماء.

**ژباړه:** ظاهر دا ده ـ او الله ښه پوهه دی ـ چې دا ايت عام دی ټولو د امر خاوندانو او علماو ته شامل دی.

او په بل ايت كې اللهﷻ فرمايي: وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَٰٓئِكَةِ إِنِّي جَاعِلٌ فِي ٱلْأَرْضِ خَلِيفَةً [سُورَةُ البَقَرَة: ٣٠]. ژباړه: او كله چې ستا رب وويل: زه په ځمكه كې د يو خليفه پيدا كوونكی يم.

امام قرطبيرحمه الله د دې ايت په شرحه كې ويلي دي: هذه الآية أصل في نصب إمام وخليفة يسمع له ويطاع لتجتمع به الكلمة وتنفذ به أحكام الخليفة، ولا خلاف في وجوب ذلك بين الأمة ولا بين الأئمة إلا ما روي عن الأصم، حيث كان عن الشريعة

أصم، وكذلك كل من قال بقوله واتبعه على رأيه ومذهبه. ا.هـ (الجامع ١/٢٦٤).

**ژباړه:** دا ایت د خلیفه مقررولو په اړه دلیل دی چې خبره به یې اورېدل کېږي او منل کېږي دې لپاره چې د مسلمانانو خبره پرې راجمعه وي یعنې اتفاق یې برابر وي او د خلیفه احکام ورسره نافذ وي چې د دې په وجوب کې د امت او امامانو تر منځ هېڅ اختلاف نشته مګر هغه اختلاف چې د اصم نه نقل دی چې له شریعت څخه کوڼ دی او همداراز هغه څوک چې د هغه په څېر وینا یې کړې وي او د هغه د رای او د مذهب تابعداري یې کړې وي.

او په حدیث د مسلم کې راغلي دي چې د عبد الله بن عمر رضي الله عنهما څخه نقل دي چې نبي علیه السلام فرمایلي دي:

من مات وليس في عنقه بيعة مات ميتة جاهلية، **ژباړه:** څوک چې مړ شو او په غاړه کې یې د خلیفه بیعت نه و مرګ به یې د جاهلیت وي. نو بیعت د خلیفه واجب دی او دا وجوب به هله سرته رسېږي چې کله خلیفه موجود وي نو له دې وجې د خلیفه مقررول او د هغه په مشرۍ کې جهاد کول واجب دي.

او په حدیث د ابو هریره رضي الله عنه کې دي نبي صلی الله علیه وسلم فرمایي:

إنما الإمام جنة يقاتل من ورائه ويتقى به، فإن أمر بتقوى الله عز وجل وعدل كان له بذلك أجر، وإن يأمر بغيره كان عليه منه: رواه مسلم.**ژباړه:** یقیناً خلیفه به ډال وي چې د هغه تر مشرۍ لاندې به جهاد کېږي او په هغې سره به ځان بچ کولی شي، که چېرې یې د تقوی امر کاوه او عدل یې کاوه نو د هغه لپاره به د دې اجر وي او که د ګناه امر یې کاوه نو په هغه به یې ګناه وي. او په حدیث د حذیفه ابن الیمان کې دي:

تلزم جماعة المسلمين وإمامهم، رواه البخاري (برقم ٣٦٠٦)-

**ژباړه:** د مسلمانانو د لښکر او د هغوی د خلیفه سره یو ځای شه.

په دې اړه نور هم ډېر دلایل شتون لري، خو دا یوه خبره باید یاد وساتل شي چې کله جهاد فرض عین وي او خلیفه موجود نه وي نو شتون يې شرط نه دی او نه په کې نورو شرطونو ته اړتیا شته لکه د مور او پلار اجازه، د قرضه وړي اجازه او داسې نور. او یا هم خلیفه جهاد معطل کړي نو بیا يې هم اجازت ته اړتیا نشته، شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله ویلي دي: وأما قتال الدفع فهو أشد أنواع دفع الصائل عن الحرمة والدين فواجب إجماعاً، فالعدو الصائل الذي يفسد الدين والدنيا لا شيء أوجب من دفعه، فلا يشترط له شرط؛ بل يدفع بحسب الإمكان، وقد نص على ذلك العلماء أصحابنا وغيرهم، فيجب التفريق بين دفع الصائل الظالم الكافر، وبين طلبه في بلاده . ا.هـ [المستدرك لابـــن قاسم ٣/ ٢١٥].

**ژباړه:** او هر چې دفاعي جهاد دی نو د حمله کوونکي دښمن له خپل عزت او دین څخه د مخنیوي کولو تر ټولو سخت ډول دی، نو په اجماع سره واجب دی نو هغه حمله کوونکی دښمن چې دین او دنیا خرابوي؛ له دفعه کولو څخه بل غټ واجب نشته نو هیڅ شرط ورله نشته، بلکې د امکان تر کچې مخنیوی به يې کېدلی شي چې دا خبره زمونږ ملګرو علماوو او نورو په څرګنده توګه کړې ده نو د حمله کوونکي ظالم کافر د مخنیوي کولو او هغوی پسې د هغوی علاقو ته ورتللو تر منځ فرق واجب دی.

خو کله چې خلیفه موجود وي او د کفارو سره په جهاد بوخت وي نو په تابعدارۍ کې داخلېدل او په مشرۍ کې يې جهاد کول لازم دي لکه په اوس وخت کې چې شرعي خلیفه موجود دی او په ټوله نړۍ يې د اسلامي دولت د قیام په پار د کفارو سره په هر ډګر کې جهاد شروع کړی او دوام لري، نو له دې وجې په ټولو مسلمانانو د هغه مدد او تر مشرۍ لاندې جهاد کول لازم دي.

٦) **شپږم اصل:**

**د جهاد د وجوب شرطونو لحاظ به کېږي چې وروسته راځي.**

٧) **اوم اصل:**

**جهاد به يوازې د حربي (جنګي) کافر، مرتد او باغي مسلمان په خلاف کېږي، مستأمن، ذمي او معاهد کافر په خلاف به جهاد نه کېږي.**

حربي کافر هغه ته وايې چې د مسلمانانو سره يې نه هم د صلحې تړون وي، نه يې د جزيې تړون وي او نه هم د امان تړون وي، نو هر کافر چې د مسلمانانو سره له دغو تړونونو څخه کوم تړون کې داخل نه وي هغه به حربي وي. برابره ده که د مسلمانانو سره په عملي توګه جنګ کې ښکېل وي او که نه وي خو حکم يې د حربي دی چې وينه او مال يې حلال دي، چې دا د اوسنيو ټولو کفارو حال دی پرته له هغو اصلي کفارو چې په دار الاسلام کې پاتې کېږي او مسلمانانو ته جزيه ورکوي، د حربي کافر سره د جنګ حکم په دې ايت کې ذکر دی چې اللهﷻ فرمايي:
فَإِذَا انسَلَخَ الْأَشْهُرُ الْحُرُمُ فَاقْتُلُوا الْمُشْرِكِينَ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ وَخُذُوهُمْ وَاحْصُرُوهُمْ وَاقْعُدُوا لَهُمْ كُلَّ مَرْصَدٍ ۚ فَإِن تَابُوا وَأَقَامُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا الزَّكَوٰةَ فَخَلُّوا سَبِيلَهُمْ - إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ [سُورَةُ التّوبَة: ٥] - **ژباړه:** نو کله چې حرامې مياشتې تېرې شي، نو مشرکان ووژنئ چيرې چې يې ومومئ او هغوی ونيسئ او ايسار يې کړئ، او په هر څارنځي کې ورته کېنئ. نو که هغوی توبه وباسي او لمونځ قايم کړي او زکات ورکړي، نو لاره ورته آزاده کړئ. الله بښونکی او رحم کوونکی دی.

همداراز د مرتدينو په خلاف به جهاد کېږي خو مرتد چا ته وايي؟ نو په دې اړه په لنډه توګه داسې وايو: چې مرتد هغه چا ته وايي چې د اسلام قبلولو نه وروسته د کفر عمل، اعتقاد يا وينا ته راتګ وکړي، او يا هم د اسلام په يو اجماعي حکم کې

شک وکړي چې شرطونه د ارتداد په کې پوره او موانع یې منتفي وي.

په دې اړه د علماوو ځینې عبارتونه راوړو دې لپاره چې د مرتد تعریف ښه واضح شي: په [حاشية الصاوي المصري المالكي على الشرح الصغير: ٤/ ٤٣١] کې دي:

الردة كفر مسلم بصريح أو قول يقتضيه أو فعل يتضمنه اهـ -

**ژباړه:** ارتداد: د مسلمان کفر کول په ښکاره (وینا)یا په داسې وینا چې تقاضا د کفر کوي یا په داسې کار چې په کفر مشتمل وي.

**شربيني شافعي په خپل مشهور کتاب [مغني المحتاج إلى معرفة معاني ألفاظ المنهاج: ٥/ ٤٢٨]** کې وایې: الردة: هي قطع الإسلام بنية أو قول كفر أو فعل، سواء قاله استهزاء أو عنادا أو اعتقادا. **ژباړه: ارتداد:** د اسلام پرېکول په نیت سره یا په کفري وینا سره یا په کفري کار سره، برابره ده که وینا د کفر یې په توقې یا ضد او یا اعتقاد سره کړې وي.

شیخ منصور بن یونس البهوتي الحنبلي په خپل کتاب [کشف القناع عن متن الإقناع: ٣/ ١٣٦] کې وایي: [المرتد] لغة الراجع... وشرعا (الذي يكفر بعد إسلامه) نطقا أو اعتقادا أو شكا أو فعلا، ا.هـ. **ژباړه:** مرتد په لغت کې: راګرځېدونکي ته وایي، او په اصطلاح د شریعت کې: هغه چا ته وایي چې وروسته له اسلام څخه کفر وکړي په وینا یا اعتقاد یا شک او یا کار سره.

دا خو د مرتد تعریف و، نبيﷺ د مرتد په اړه داسې حکم کړی دی فرمایلي یې دي: مَن بدَّل دينَه فاقتُلوه، رواه البخاري، **ژباړه:** څوک چې مرتد شو ویې وژنئ.

صحابه و د مسیلمة الکذاب، اسود العنسي او مانعینو د زکات سره جهاد کړی دی چې دوی ټول مرتد شوي وو، کیسې یې په سیرت کې مشهورې دي. نو مرتد چې کله اسلام ته راونه ګرځي جهاد به ورسره کېږي.

او هر چې باغي مسلمان دی نو د ده په خلاف به هم جهاد کېږي خو مخکې ورته د صلحې وړانديز پکار دی که چېرې له خپل بغاوت څخه منعه نشي نو جهاد به ورسره کېږي. خو باغيان چا ته وايي؟ نو علماوو د باغيانو تعريف داسې کړی دی: هي طائفة من المسلمين ذات شوكة تخرج بتأويل على الإمام المسلم الذي ثبتت إمامته تبغي خلعه أو لا ترتضى الدخول في طاعته. وتُسمى أهل البغي وطائفة الإمام تُسمى أهل العدل. **ژباړه:** باغيان د مسلمانانو هغه قوت لرونکې ډلې ته وايي چې د يو تاويل له وجې د هغه مسلمان خليفه په خلاف راوځي چې خلافت يې د شريعت په رڼا کې ثابت وي، له تابعدارۍ څخه يې وتل غواړي او يا يې په طاعت کې داخلېدل نه غواړي دوی ته باغيان وايې او د خليفه ملګرو ته عادلان وايي.

او د تاويل مثال يې دا دی چې په خليفه باندې د ظالم ګومان کوي برابره ده که دوی په خپل تاويل کې په حقه وي او که په باطله وي، خو دا چې په شريعت کې د مسلمان خليفه په خلاف له پاڅون څخه منعه راغلې که څه هم ظالم هم وي نو له دې امله په خلاف يې پاڅون ناروا او بغاوت بلل کېږي. د باغيانو په خلاف د جهاد امر په دې ايت کې ذکر دی چې الله ﷻ فرمايي: وَإِن طَآئِفَتَانِ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ اقْتَتَلُوا فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا ۖ فَإِن بَغَتْ إِحْدٰىهُمَا عَلَى الْأُخْرٰى فَقٰتِلُوا الَّتِى تَبْغِى حَتّٰى تَفِىٓءَ إِلٰىٓ أَمْرِ اللَّهِ ۚ فَإِن فَآءَتْ فَأَصْلِحُوا بَيْنَهُمَا بِالْعَدْلِ وَأَقْسِطُوٓا ۖ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ [سُورَةُ الحُجرَات: ٩] **ژباړه:** او که له مؤمنانو څخه دوی ډلې پخپلو منځو کې په جنګ شي، نو د هغو په منځ کې صلح وکړئ. بيا که له هغو څخه يوه ډله پر بلې تېری وکړي، نو له تېري کوونکي (ډلې) سره وجنګېږئ، تر دې پورې چې هغوی د الله د حُکم خوا ته راوګرځي. بيا کله چې هغوی را وګرځي، نو په منځ کې يې په عدل سره سوله وکړئ، او انصاف وکړئ چې الله انصاف کوونکي خوښوي.

نو په دې ايت کې اللهﷻ د باغيانو په قتال امر کړی دی چې امر لپاره د وجوب وي نو د باغيانو سره جهاد فرض کفايي دی چې کله يې جنګ ته د اړتيا سره سم مجاهدين ووتل نو وروسته پاتې کېدونکي ګناهګار نه دي.

او هر چې مستأمن، ذمي او معاهد کفار دي له هغوی سره چې جهاد نه کېږي نو د هغې لپاره خپل دلايل دي کوم چې په قران او حديث کې ذکر دي خو زمونږ له ذمي، معاهد او مستأمن څخه هغه کفار مراد دي چې د شريعت په اصطلاح کې ورته دغه اوصاف ثابت وي، د طواغيتو په اصطلاح کې مراد نه دي، د دوی اصطلاح او د شرعي اصطلاح تر منځ ډېر توپير شتون لري، مسلمانان بايد تش په نومونو دوکه نشي.

## ۸) اتم اصل:

## د جهاد د مشرۍ واګې به د مسلمانانو په لاس کې وي د کافرانو او مرتدينو په لاس کې به نه وي:

که څه هم دې اصل ته د پنځم اصل په ضمن کې اشاره وشوه خو دلته د لا زيات وضاحت لپاره وايو چې: جهاد يو عبادت دی، مشري به يې مسلمانان کوي، خليفه به يې مسلمان وي، د شورا غړي به يې مسلمانان وي د ادارو او د جنګي ګروپونو مشران به يې مسلمانان وي، لښکر به يې ټول د مسلمانانو نه تشکيل شوی وي، په خپله مشوره کې به کافر او مرتد ته ځای نه ورکوي تر دې که ذمي کافر هم وي ځان ته به يې نه رانژدې کوي، په جنګ کې به ورڅخه د افرادو کومک نه اخلي او نه به يې جنګ د کفارو او مرتدينو په مالي مرستو او چندو تکيه وي بلکې مسلمانان به خپل مستقل نظم لري چې په استناد به يې جهادي ترتيبات ترسره کوي، د کفارو سره به هېڅ ډول دوستي نه پالي، ډيپلوماتانو او نورو جاسوسانو ته به يې په خپل

منځ کې ځای نه ورکوي چې په مروجه طریقې سفارتي اړیکې وپالي، نه به یې هم په کانفرانسونو او غونډو کې برخه اخلي او نه به ورسره نورې دوستانه اړیکې پالي؛ بلکې د شریعت په چوکاټ کې چې کومو اړیکو ته جواز راغلی او د کومو کفارو سره راغلی هماغه اندازه کې به یې پالي، اللهﷻ فرمايي:

وَلَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا، (سورة النساء: ۱۴۱)

**ژباړه:** اللهﷻ کافرانو ته په مسلمانانو باندې هیڅ کومه لار د برلاسه کېدو نه ده جوړه کړې. او په حدیث کې دي عن عائذ بن عمرو المزنيرضي الله عنه عن النبيﷺ قال: «الإسلام يَعْلُو ولا يُعْلَى».[حسن] - [رواه الدارقطني ۳۶۲۰].

**ژباړه:** د عائذ بن عمرو المزني رضي الله عنه څخه نقل دي چې هغه یې له نبيعليه السلام څخه نقلوي چې هغه فرمايي: اسلام به اوچت وي او بل شی به ورباندې لپاسه نه وي یعني اسلام به مغلوب نه وي. نو دا که څه هم خبر دی خو په معنا د امر سره دی لکه څنګه چې شارحینو ویلي دي، نو اسلام به اوچت وي، او د اسلام اوچتول له مونږ څخه مطلوب دي، د اسلام اوچتوالی دا دی چې د بل دین والا به ورباندې حاکم نه وي، خبره به یې ورباندې لپاسه نه وي، امر به یې ورباندې نه چلېږي. بلکې د نورو دینونو والا به محکوم وي، جزیه به ترې اخستل کیږي، خو دا چې کله یې د مشرۍ واګې د کافرانو په لاس کې وي، د هغوی لخوا اداره کیږي، نو داسې نظم هیڅکله اسلامي او جهادي نشي کېدای، دا هسې مسلمانان غولول دي او نور هیڅ نه دي.

## ۹) نهم اصل:

**جهاد به د قوميت او وطنيت له افکارو جدا د ولاء براء عقيدې په اساس ترسره کېږي، ځکه جهاد چې د ولاء براء عقيدي عملي تطبيق بلل کېږي:**

په دې کې به د نصرت، مدد او محبت معيار يوازې اسلام وي قوم، ژبه او وطن به نه وي، نو که چېرې په يو مسلمان باندې د دنيا په لرې گوټ کې هم د کفارو له خوا ظلم وشي مسلمان به په هغې دردمند کېږي او د خپل وس سره سم به د هغه مدد کوي، د هغه د انتقام لپاره به قيام کوي، د قوم، ژبې يا وطن بېلتون به يې د مدد نه مانع نه گرځي او نه به يې هم نړيوال طاغوتي قوانين د مدد نه مانع گرځي او نه به دا شعار زمزمه کوي چې « مونږ د چا په داخلي چارو کې لاسوهنه نه کوو» او نه به هم په غندنو بسنه کوي، بلکې د اسلامي وروروله له مخې به خپل مسئوليت ادا کوي او د مسلمان غم به خپل غم گڼي تر څو چې له هغه څخه ظلم نه وي دفع کړی تر هغه به نه شاته کېږي، د صحابه ؤ او د سلفو تاريخ ته که فکر وشي د هغوی جهاد يوازې د ولاء براء عقيدې په اساس قائم و، هغوی رنگ، قوم، ژبې او وطن ته اعتبار نه دی ورکړی بلکې اسلام ته يې اعتبار ورکړی دی، هغوی جهاد په وطني او قومي حدودو کې نه و رابند کړی، د هغوی لښکر يوازې د يو وطن او قوم له وگړو څخه نه و تشکيل شوی بلکې عربي، عجمي، سور او تور ټول په کې د ولاء براء عقيدې په اساس راجمعه وو نو ځکه خو الله ﷻ ورته بې شماره فتحې ورکړې او اسلام يې د دنيا گوډ گوډ ته رسولی، مونږ ته نبي عليه السلام مسلمان سره د موالات ښائسته نمونې پريښي دي هغه د يوې مسلمانې ښځې د بې عزتی په غچ کې د بنو قينقاع يهود له مدينې څخه شړلي دي، او په ډېرو احاديثو کې يې له

مسلمان سره موالات ته ترغيب ورکړی دی فرمايلي دي:

الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ، وَلَا يَخْذُلُهُ، وَلَا يَحْقِرُهُ الحديث، (رواه مسلم ۴۶۵۶) ـ

**ژباړه:** مسلمان د مسلمان ورور دی ظلم به ورباندې نه کوي، نه به يې مدد پرېږدي او نه به يې سپک ګڼي. مسلمانان يې د يو بل ورونه بللي دي او د يو جسد په څېر يې ګڼلي دي، نو لکه څنګه چې يو جسد ټوټه کېدل نه قبلوي همدا ډول به مسلمانان هم له يو بل څخه په ژبې، وطن او قوم سره جدا کېدل نه قبلوي، د دوی تر منځ به يو قوي ربط موجود وي چې هغه د اسلام ربط دی، د ولاء براء عقيده ده، او د همدغه ربط په اساس به په يو بل خفه کېږي او په يو بل به غيرت کوي او له يو بل څخه به دفاع کوي.

## ۱۰) لسم اصل:

**جهاد به د اسلامي اصولو څخه سرچينه اخلي د کفري اصولو او اساساتو څخه به سرچينه نه اخلي، نړيوالو ميثاقونو ته به په کې اعتبار نه ورکول کېږي.**

دا ځکه چې جهاد يو عبادت دی او عبادت به د الله ﷻ د امر او د محمد رسول الله ﷺ د طريقې موافق وي او کله چې د دې موافق نه وي هغه ته جهاد نه ويل کېږي بلکې عام جنګ ورته ويل کېږي، همداراز کله چې په جنګ کې نړيوال کفري قوانين معتبر شي نو بيا هم جهاد نه بلل کېږي بلکې د جاهليت جنګ بلل کېږي دا ځکه چې جهاد د جاهلي قوانينو له منځه وړلو لپاره کېږي خو چې بيا هم سرچينه يې جاهلي قوانين شي، ملکي او قومي تړې شي؛ هغه جهاد نه بلل کېږي نبي عليه السلام د جاهلي قوانينو ختمولو لپاره راغلی وه او دې لپاره نه دی راغلی چې جاهلي

قوانين بېرته اعاده کړي لکه په حديث د عمرو بن عبسه کې راغلي دي چې ده د نبيﷺ نه پوښتنه وکړه: وبأي شيء أرسلك ؟ قال: " أرسلني بصلة الأرحام، وكسر الأوثان، وأن يوحد الله لا يشرك به شيء (رواه مسلم ٩٦٩)

**ژباړه:** ته اللهﷻ په څه سره رالېږلی یې؟ نبي ﷺ وفرمایل: زه یې د خپلوۍ په پاللو او د بوتانو په ماتولو رالېږلی یم او په دې چې یوازې د اللهﷻ بندګي وشي چې هېڅ شی ورسره برخه دار جوړ نشي (رالېږلی یم). نو دغه بوتان چې عبارت دي له قومپالنې، وطنپالنې، ډیموکراسۍ، نړیوال قوانین او نورو څخه، نبيﷺ د دې په ماتولو او ختمولو رالېږل شوی، د مسلمانانو جهاد به د همدغه قوانینو له منځه وړلو لپاره وي او د دغې تائید لپاره به نه وي، تر څو چې هر ډول بوتان د ځمکې له مخ څخه نه وي ختم شوې، جهاد به جاري وي، تر څو چې یوازې د الله قانون په ځمکه نه وي حاکم شوی، جهاد به جاري وي تر څو چې الله ته بندګي نه وي خاص شوې جهاد به جاري وي. د الله بندګي عامه ده که د مونځ، روژې، زکات، حج، سجدې، محبت، تعظیم او نورو، په بڼه وي او که د تحاکم او تحکیم په بڼه وي. که انفرادي عبادت وي او که ټولنیز عبادت وي .که شخصي، مدني او سیاست په اړخ کې وي او که د قضا او نظام په اړخ کې وي. که د ژوند په هر اړخ کې وي خو تر څو چې الله ته نه وي خاص شوی جهاد به جاري وي. د جاهلیت په زمانه کې د شرک لپاره مستقله قانون سازي نه وه شوې خو اوس ورته قانون سازي هم شوې. هغه وخت کې خلک په انفرادي عبادت نه رانیول کېدل خو اوس که څوک دا دین په انفرادي توګه هم عملي کوي طواغیت یې نه پرېږدي، هغه وخت دغه کفري قوانین په لیکلې بڼه موجود نه وو، خو اوس ورته مستقله قانون سازي شوې. فوج، پولیس او امنیتي قواوې ورته ګمارل شوي، خپل مشرّع او قانون ساز لري خپل کتاب او پیغمبر لري، خپل حل او حرمت لري، بلکې مستقل دین دی. لکه څنګه چې

شیخ احمد شاکر دا خبره کړې هغه په عمدة التفسیر دویم جلد ص: ۲۱۳ کې وایي: هذه القوانین التي فرضها على المسلمین، أعداء الإسلام السافروا العداوة؛ هي في حقیقتها دین آخر، جعلوه دیناً للمسلمین، بدلاً من دینهم النقي السامي؛ لأنهم أوجبوا علیهم طاعتها، وغرسوا في قلوبهم حبها، وتقدیسها والعصبیة لها. حتى لقد تجري على الألسنة والأقلام، كثیرًا كلمات (تقدیس القانون) (قدسیة القضاء) (حرمة المحكمة)؛ وأمثال ذلك من الكلمات، التي یأبون أن توصف بها الشریعة الإسلامیة، وآراء الفقهاء الإسلامیین. **ژباړه:** دغه قوانین چې د اسلام ښکاره دښمنانو په مسلمانانو مقرر کړي دي، دا په حقیقت کې بل دین دی چې د مسلمانانو لپاره یې د هغوی د پاک او اوچت دین په بدل کې مقرر کړی دی، ځکه چې په دوی باندې یې د دغه دین اطاعت واجب کړی دی او په زړونو کې یې ورله مینه، درناوی او د هغې لپاره تعصب اچولی، تر دې چې په ژبو او قلمونو ډېری داسې خبرې جاري شوي چې وایي: قانون ته درناوی، د قضائیه قوي تقدس، د محکمې عزت او داسې نور کلمات، کوم چې دوی شریعت ته او د اسلامي فقهاو رای ګانو ته نه کاروي. نو دا قانون د جاهلیت د زماني له قانون څخه په څو چنده سخت دی. څوک چې په خپل جنګ کې د دغه قوانینو لحاظ کوي، دغه جنګ یې جهاد نه دی، بلکې د طاغوت په لار کې جنګ دی چې په دې کې دوه مسلمانان هم اختلاف نه لري.

### ۱۱) یوولسم اصل:

## په جهاد کې له افراط ـ تفریط څخه ځان ساتل.

د دې لپاره تر ټولو اسانه لاره دا ده چې خپل مزاج د شریعت تابع کول نو شریعت کې چې د یو کار په اړه څومره سختي راغلي وي، هغومره سختي کول او څومره نرمي چې راغلې وي هغومره نرمي کول او د شریعت له حدودو څخه تجاوز نه

کول، الله ﷻ فرمايي:

وَمَآ ءَاتٰىكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهٰكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا- وَاتَّقُوا اللَّهَ- إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ، (سُورَةُ الحَشر: ۷). **ژباړه:** څه چې پيغمبر تاسې ته درکوي، هغه واخلئ او له څه شي څخه چې تاسې منع کوي، له هغه څخه منعه شئ. د الله څخه ووېرېږئ، الله سخته سزا ورکوونکی دی.

د افراط مثال دا دی چې يوه ګناه مکفّره نه وي، يعني د کفر لامل نه وي او څوک يې د کفر درجې ته ورسوي، يا مستحب شی واجب درجې ته رسول، مکروه تنزيهي حرام ته رسول او داسې نور. د تفريط مثال د دې په عکس دی لکه يوه مکفّره ګناه غير مکفّره ګڼل او هسې بې ځايه تأويلات په کې کول، واجب مستحب ګڼل او داسې نور. له افراط تفريط څخه دين ته غټ نقصان رسېږي د مجاهدينو صف پرې کمزوری کېږي اختلافات رامنځته کېږي د دين نه د خلکو نفرت پيدا کېږي او د اسلامي دعوت مخنيوی ورسره کېږي مجاهد بايد له دې څخه ځان وساتي او د دين په امورو کې ډېر محتاط واوسي.

## ۱۲) دولسم اصل:

## جهاد لپاره هجرت کول :

هجرت د جهاد لپاره اساسي رکن بلل کېږي پرته له هجرته په صحيح طريقه جهاد ممکن نه دی، په هجرت سره د جهاد اتمام راځي، د مسلمانانو جماعت ورسره قوي کېږي او دار الاسلام ته لاره هوارېږي له دې وجې خو هجرت ته په قران او حديث کې ترغيب راغلی دی الله ﷻ فرمايي:

إِنَّ الَّذِينَ ءَامَنُوا وَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَجٰهَدُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أُولٰٓئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ اللَّهِ- وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ [سُورَةُ البَقَرَة : ۲۱۸]

ژباړه: يقيناً هغه کسان چې ايمان يې راوړی دی او هغه کسان چې د الله په لار کې يې خپل کور وطن پريښی او جهاد يې کړيدی، هغوی حق لري چې د الله د رحمت هيله من وي او الله د هغو د خطاوو ښښونکی او پر هغو د خپل رحمت پېرزو کوونکی دی.

او په حديث کې راځي: عن سبرة بن أبي فاکه، قال: سمعت رسولﷺ يقول: " إن الشيطان قعد لابن آدم بأطرقه، فقعد له بطريق الإسلام، فقال: تسلم وتذر دينك ودين آبائك وآباء أبيك، فعصاه فأسلم، ثم قعد له بطريق الهجرة، فقال: تهاجر وتدع أرضك وسماءك، وإنما مثل المهاجر كمثل الفرس في الطول، فعصاه فهاجر، ثم قعد له بطريق الجهاد، فقال: تجاهد فهو جهد النفس والمال، فتقاتل فتقتل،فتنكح المرأة، ويقسم المال، فعصاه فجاهد،" فقال رسول اللهﷺ: «فمن فعل ذلك كان حقا على اللهﷻ أن يدخله الجنة، ومن قتل كان حقا على اللهﷻ أن يدخله الجنة، وإن غرق كان حقا على الله أن يدخله الجنة، أو وقصته دابته كان حقا على الله أن يدخله الجنة» (صحيح رواه النسائي برقم ۳۱۳۴)

**ژباړه:** د سبره بن أبي فاکهؓ څخه نقل دي هغه وايي ما د رسول اللهﷺ نه اورېدلي دي چې فرمايل يي: يقيناً شيطان انسان ته په ټولو لارو کې ناست دی، د اسلام په لاره کې ورته ناست دی نو ورته وايي: اسلام راوړې، خپل دين، د پلار او نېکه دين دې پرېږدې، نو انسان يې نافرماني وکړي نو اسلام راوړي، بيا ورته د هجرت په لاره کې کيني ورته وايي: هجرت کوې، خپله ځمکه او اسمان پرېږدې يقيناً د مهاجر مثال خو د آس په څېر دی چې پړي کې تړل شوی وي (يعني بيا به د هجرت په علاقه کې د تړلي آس په څېر بند پاتې يې او ملاقاتونه به دې خپلوانو سره نه کېږي) نو انسان ورله نافرماني وکړي او هجرت وکړي بيا ورته د جهاد په لار کې ناست وي نو ورته وايي: جهاد کوې دا خو ځان او مال په تکليف کې غورځول دي

نو چې جنګ وکړې وبه وژل شې، ښځه به دې په نکاح شي مال به دې تقسيم شي، نو انسان ورله نافرماني وکړي او جهاد وکړي، نو رسول اللهﷺ فرمايي:
چا چې دا کار وکړو په الله يې حق جوړيږي چې جنت ته يې داخل کړي او څوک چې ووژل شو، په الله يې حق جوړيږي چې جنت ته يې داخل کړي او که چېرې اوبو کې ډوب شو، په الله يې حق جوړيږي چې جنت ته يې داخل کړي يا د خپلې سپرلۍ نه راوغورځيدو (څټ يې مات شو)، په الله يې حق جوړيږي چې جنت ته يې داخل کړي.
نو هجرت ډېر اوچت عمل دی په ځيني وختونو کې فرض وي چې کله دار الاسلام موجود شي، يا په خپله علاقه کې د دين اساسي احکام نشي ښکاره کولی، عمل ورباندې نشي کولی او په ځيني وختونو کې مستحب وي چې خپل احکام لري د فقهې په کتابونو کې تفصيلي ذکر دي.
**الغرض:** دا د شرعي جهاد د اصولو په اړه خبره وه چې رجع د دغه ټولو اصولو قران او حديث ته کېږي د قران او حديث صحيح تابعداري انسان له هر ناوړه وينا او کار څخه رابندوي خو څومره چې د قران او حديث سره اړيکه کمه وه هغه هومره به د هلاکت په کندو کې غورځېږي .نو مجاهد ته پکار دي چې د قران او حديث سره کلکه اړيکه ولري د جهاد له مسائلو ځان خبر کړي او عمل ورباندې وکړي.

## له دې وروسته د جهاد شرطونو ته راځو نو وايو:

# د جهاد شرطونه

**علماوو د جهاد د وجوب لپاره شپږ شرطونه ويلي دي چې بيان يې په دې ډول دی:**

**اول شرط: اسلام دی، جهاد په مسلمان واجب دی د کافر او مرتد جهاد صحيح نه دی.**

ځکه چې هغوی د جهاد لياقت نه لري، الله ﷻ فرمايي:

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ هَلْ أَدُلُّكُمْ عَلَىٰ تِجَٰرَةٍ تُنجِيكُم مِّنْ عَذَابٍ أَلِيمٍ؛ تُؤْمِنُونَ بِٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ وَتُجَٰهِدُونَ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ بِأَمْوَٰلِكُمْ وَأَنفُسِكُمْ - ذَٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ (سورة الصف: ۱۰،۱۱) - **ژباړه:** اې د ايمان والاو! ايا زه تاسو ته داسې تجارت ونه ښايم چې تاسو ته له دردناک عذاب څخه نجات درکړي، تاسو به ايمان راوړئ په الله او د هغه په رسول او جهاد به کوئ د الله په لاره کې په خپلو مالونو او ځانونو سره، دا ستاسو لپاره ډېر غوره دي که چېري تاسو پوهېږئ.

نو په دې ايت کې يې ايمان له جهاد څخه مخکې راوړ. دا دليل دی چې د جهاد لپاره ايمان شرط دی. او په حديث کې راځي: عن البراء بن عازب رضي الله عنه قال: أَتَى النبيَّ ﷺ رَجُلٌ مُقَنَّعٌ بِالحَدِيدِ، فَقالَ: يارَسولَ اللَّهِ أُقَاتِلُ أَوْ أُسْلِمُ؟ قالَ: أَسْلِمْ، ثُمَّ قَاتِلْ، فأَسْلَمَ، ثُمَّ قَاتَلَ، فَقُتِلَ، فَقالَ رَسولُ اللَّهِ ﷺ: عَمِلَ قَلِيلًا وأُجِرَ كَثِيرًا (صحيح البخاري) .

**ژباړه:** د براء بن عازب رضي الله عنه څخه نقل دي هغه وايي: نبي ﷺ ته يو سړی راغی چې د اوسپنې زغره يې اچولې وه نو ويې ويل: ای د الله رسول ﷺ! جهاد ته لاړ شم او که اسلام راوړم؟ نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: اسلام راوړه بيا جهاد ته لاړ شه. نو هغه سړي اسلام راوړو بيا جهاد ته لاړو نو شهيد شو، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: لګ عمل يې وکړ او ډېر اجر ورته ورکړی شو.

له اسلام پرته یو عمل هم نه قبلېږي. نو څوک چې جهاد کوي ایمان او د عقیدې صحیحوالی ورته ضروري دی، مخکې له هر څه باید اسلامي عقېده وپېژني، کفر، شرک، نفاق، نواقض د اسلام او بدعت وپېژني، بیا د صفا عقیدې په حال کې جهاد ته مخه کړي، څوک چې پرته له بصیرته د جهاد میدان ته راوځي نو د فائدې نه یې فساد ډېر وي.

## دویم شرط: بلوغ دی، په ماشوم باندې جهاد فرض نه دی.

دلیل پرې حدیث د ابن عمر ﷺ دی چې هغه وایي: عرضت على النبي ﷺ يوم أحد وأنا ابن أربع عشرة سنة فلم يجزني في المقاتلة. (السنة للمروزى ١ /٤٧) –

**ژباړه:** زه نبي ﷺ ته د احد د غزا په ورځ ورمخې ته شوم په داسې حال کې چې لس کلن وم، نو ما ته یې د جهاد اجازه رانکړه.

خو که چېرې ماشوم جهاد ته وځي نو جهاد یې صحیح دی. ځکه چې د نېک عمل شرطونه په کې پوره دي که څه هم د وجوب شرطونه په کې پوره نه دي.

## دریم شرط: عقل دی، نو په لېوني باندې جهاد نشته.

دلیل: حدیث کې دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: رُفِعَ الْقَلَمُ عَنْ ثَلَاثَةٍ، عَنِ النَّائِمِ حَتَّى يَسْتَيْقِظَ، وَعَنِ الصَّبِيِّ حتَّى يَحْتَلِمَ، وَعَنِ الْمَجْنُونِ حَتَّى يَعْقِلَ (ابوداود رقم:٤٣٩٢)

**ژباړه:** قلم د تکلیف له درې کسانو څخه پورته شوی: له ویده څخه تر دې چې راویښ شي او له ماشوم څخه تر دې چې بالغ شي او د لېوني څخه تر دې چې پوهه شي.

## څلورم شرط: الحرية، يعني ازاد به وي نو په غلام جهاد نشته:

دلیل: په حدیث د جابر ﷺ کې دي: أنَّ عبدًا قدم على النَّبيِّ ﷺ فبايعه على الجهاد والإسلام، فقدم صاحبه فأخبره أنَّه مملوك، فاشتراه ﷺ منه بعبدين، فكان بعد ذلك إذا أتاه من لا يعرفه ليبايعه، سأله أحر هو أم عبد، فإن قال حر بايعه على الإسلام

والجهاد، وإن قال مملوك بايعه على الإسلام دون الجهاد. (أخرجه مسلم: ١٦٠٢) **ژباړه:** يو غلام نبيﷺ ته راغی، په جهاد او اسلام يې ورسره بيعت وکړ، نو د غلام مالک راغی او نبيﷺ ته يې خبر ورکړو چې دا خو غلام دی، نو نبيﷺ ترې د دوه غلامانو په بدل کی واخستو، نو له دې وروسته چې به د نبي ﷺ خوا ته ناپېژانده کس د بيعت لپاره راغی نو پوښتنه به يې ترې کوله چې ازاد يې که غلام؟ که وبه يې ويل چې ازاد يم نو په اسلام او جهاد دواړو به يې ترې بيعت اخستو او که وبه يې ويل چې غلام يم، نو يوائې په اسلام به يې ترې بيعت اخستو، نه په جهاد.

## پنځم شرط: الذكورة، نارينه به وي په زنانه جهاد فرض نه دی:

دليل: عَنْ عَائِشَةَ أُمِّ الْمُؤْمِنِينَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهَا، قَالَت: اسْتَأْذَنْتُ النَّبِيَّ ﷺ فِي الْجِهَادِ، فَقَالَ : جِهَادُ كُنَّ الْحَج، (اخرجه البخاري ٢٨٧٥)، **ژباړه:** د عائشهرضي الله عنها څخه نقل دي هغه وايي: ما د نبي ﷺ نه د جهاد اجازه وغوښتله، نو هغه وفرمايل: ستاسو جهاد حج دی. خو که چيرې زنانه په غزا کې برخه واخلي، نو جهاد يې صحيح دی، ځکه د نيک عمل شرطونه په کې موجود دي که څه هم واجب وربانديې نه دی . لکه ځيني صحابياتې د نبي عليه السلام سره غزواتو ته تللي دي او د زخميانو خدمت يې کړی دی.

## شپږم شرط: الاستطاعة المالية والبدنية : مالي او بدني وس به لري، په بې وسه انسان جهاد نشته.

دليل: اللهﷻ فرمايي: لَّيْسَ عَلَى الضُّعَفَآءِ وَلَا عَلَى الْمَرْضَىٰ وَلَا عَلَى الَّذِينَ لَا يَجِدُونَ مَا يُنفِقُونَ حَرَجٌ إِذَا نَصَحُوا لِلَّهِ وَرَسُولِهِۦ ۚ مَا عَلَى الْمُحْسِنِينَ مِن سَبِيلٍ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ (سورة التوبة: ٩١)- ژباړه: نشته په کمزورو او نه په مريضانو او نه په هغو کسانو چې نه مومي هغه شی چې خرچ يې کړي، څه ګناه (جهاد ته په نه وتلو) کله

چې اخلاص کوي الله او د هغه رسول ته، نشته په احسان کوونکو باندې هېڅ ملامتيا او اللهﷻ ښښنه کوونکی رحم کوونکی دی. خو د وس نه دا مراد نه دی چې د کافر سره به د افرادو په شمار او اسلحې هر څه کې برابر وي، ځکه اسلامي تاريخ ته که وګورو د مسلمانانو قوت په هره زمانه کې د کافرانو نه کم وي خو بيا يې هم جهاد جاري ساتلی دی او دا دين يې تر مونږ رارسولی دی. نو همداسې به اوس هم جهاد جاري وي مسلمان بايد د کافي وس په لرلو سره جهاد ته وځي.

تر دې ځايه خو د شرعي جهاد معنا، اهداف، اصول او شرطونه ذکر شول اوس له دې وروسته بل عنوان ته راځو چې هغه د موجوده جنګيدونکو ډلو حال ته کتنه ده چې څومره د شرعي جهاد په معنا، اهدافو، اصولو او شرطونو برابر دي او څومره ترې خلاف دي نو وايو:

# دويم فصل

# د موجوده منحرفو ډلو حال ته کتنه!

په دې زمانه کې ډېرى ډلې د جهاد په نوم مبارزه کوي خو د خپلې مبارزې سره سره ځينو تګلارو، عقايدو، اهدافو او اصولو ته ژمن دي غواړو چې په دې بحث کې د دغه ډلو تګلارو، عقائدو، اهدافو او اصولو ته کتنه وکړو، ددې لپاره چې دا خبره په ډاګه شي چې دوى په ريښتيا سره د شرعي جهاد لارويان دي او که هسې د جهاد په نوم دوکه شوي د طاغوت لارويان دي، د دوى دغه مناهج، عقائد، اصول او اهداف د شرعي جهاد سره جمعه کېږي او که نه جمعه کېږي؟ نو په دې اړه د دوى د جهاد دعوه او د دوى مناهج د تقابل په توګه راوړو نو وايو:

جهاد او ډيموکراسي، جهاد او وطنيت او قوميت، جهاد او صوفيت، جهاد او اخوانېزم، جهاد او د بين الملل قوانينو ته ژمنتيا، جهاد او د نړيوالو کفارو او مرتدينو مرستې، جهاد او د موحدينو په خلاف له کفارو سره همکاري، جهاد او د اصلي کفارو او مرتدينو سره د خبرو اترو دهلېز، جهاد او منهجي فساد.

**دا خو يې سرټکي دي د دې هر يو تفصيل د الله په مدد سره شروع کوو.**

# جهاد او ډيموکراسي!

کومې ډلې چې د جهاد دعوې تر څنګ د ډيموکراسي او پرلماني نظامونو قائل دي چې د قيام او پياوړتيا لپاره يې جنګيږي، او ډول ډول قربانيانې ورکوي. ايا دوی ريښتيا هم مجاهدين دي او که نه؟ د دوی دغه مبارزه د شريعت په لاره کې ده او که نه؟ نو د دې خبرې ځواب هله کېدلی شي چې کله مونږ په ډيموکراسی يوه رڼا واچوو او حکم يې د اسلام له پلوه واضح کړو چې ايا ډيموکراسي او پارلماني نظام د دې قابل دی چې په لاره کې يې قرباني ورکړی شي، هجرت وشي، وينه تويه شي او که نا، د غورځولو قابل دی د برائت، انکار او د باطل ګڼلو قابل دی؟ نو په دې اړه د ډيموکراسی پېژندل ضروري دي:

## د ډيموکراسی اول تعريف:

**د ډيموکراسی تعريف د غربيانو په قاموس کې داسې شوی:**

السيادة للشعب، يعني ولسواکي او د سيادة معنی داسې شوی: السلطة التي ليست فوقها سلطة أخرى، **ژباړه:** داسې واک چې د هغې لپاسه د بل چا واک نه چلېږي، نو د ډيموکراسی حاصل معنا داسې شوه: ډيموکراسي ولسواکی ته وايي.

داسې ولسواکي چې لپاسه به پرې د بل هېڅا واک نه چلېږي. يعني ولس په کې پوره واکمن وي او د بل هېچا واک به ورباندې لپاسه نه وي که څه هم د الله او د رسول ﷺ واک هم وي العياذ بالله، د ډيموکراسی همدغه تعريف د دوی د قانون په کتابونو کې په مختلفو تعبيرونو موجود دی، تاسو په دې اړه د دوی کتابونه کتلی شئ. دا خو د ډيموکراسی لنډ تعريف و اوږد تعريف يې هم شته چې په هغې کې ډيموکراسي ښه واضحه شوې نو د فائدې لپاره هغه هم رانقلوو:

## د ډيموکراسۍ دويم تعريف:

حكم الشعب، والتداول السلمي للسلطة، والفصل بين السلطات، واستقلال القضاء، واحترام حقوق الإنسان، وسيادة القانون على الجميع. **ژباړه:** ولسواکي، د واک سولييز انتقال، د واکونو جلا کول، د قضائيه قوې خپلواکي، بشري حقونو ته درناوی او په ټولو د قانون واکمني.

دا د ډيموکراسۍ اوږد تعريف دی چې علماوو کړی دی، په دې تعريف کې يو څو خبرې ذکر شوي چې په دغه خبرو يې غږيږو او حکم يې واضح کوو ان شاء الله:

### ۱) اوله خبره:

ولسواکي، د دې وضاحت خو د اول تعريف په ضمن کې وشو حاصل يې دا دی چې د ولس د واک لپاسه د بل هيڅ واک نه منل کيږي که څه هم د الله او د هغه د رسول واک هم وي نو ولس چې څه غواړي؛ ځان لپاره يې حلالولی يا حرامولی شي، د الله ﷻ تحليل يا تحريم ته په کې اعتبار نه وي ـ العياذ بالله ـ بلکې ولس په کې حاکم اعلی ـ ستر حاکم ـ ګڼل کيږي،او ولس پخپله د خپل ځان لپاره فيصلې کوي.

د دې جملې لفظي معنا ته که فکر وشي نو هم يې کفر واضحه دی،د الله ﷻ د دې ايت سره ټکر لري چې فرمايي: إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ- امرأَلَّا تَعبدوٓا إِلَّآ إِيَّاهُ- ذٰلِكَ الدين الْقَيِّمُ وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ [سُورَةُ يُوسُف: ٤٠] - ژباړه: نه دی واک اختيار مگر د الله دی. دا هغه حکم دی چې پخپله له هغه څخه پرته تاسې د بل هيڅا بندگي مه کوئ. دا د ژوند سمه سيخه لاره ده، خو زياتره خلک نه پوهيږي.

نو واک يوازې د الله دی خو ډيموکراسي وايي چې نا، واک به د ولس وي، واک به د پارلمان د غړو وي، واک به د تقنيني قوې وي!! د الله سره په واک کې جگړه کوي. همدغه خبره يې د کفر ده. الله ﷻ په بل ايت کې فرمايي:

وَرَبُّكَ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ وَيَخْتَارُ مَا كَانَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ ۚ سُبْحَٰنَ اللَّهِ وَتَعَٰلَىٰ عَمَّا يُشْرِكُونَ [سُورَةُ القَصَص: ٦٨] - **ژباړه:** ستا رب، هر څه چې غواړي پيدا کوي يې او خپله خوښه کوي، نشته خلکو ته هيڅ اختيار (د الوهيت ) الله له هغه شرک څخه پاک او ډېر لوړ دی چې دوی يې کوي.

نو دې ايت کې هم دا خبره ذکر شوه چې د هر څه اختيار د الله په لاس کې دی حاکم اعلی [ستر حاکم] يوازې الله دی. او په حديث کې دي نبيﷺ فرمايي: إن الله هو الحَكم وإليه الحُكم، أخرجه أبو داود وهو صحيح. **ژباړه:** اللهﷻ واکدار دی او د امر اختيار يوازې هغه ته دی. امام شنقيطي رحمه الله وايي:

الإشراك بالله في حكمه والإشراك به في عبادته كلها بمعنى واحد لا فرق بينهما ألبتة فالذي يتبع نظاماً غير نظام الله وتشريعا غير تشريع الله كالذي يعبد الصنم ويسجد للوثن ولا فرق بينهما ألبتة بوجه من الوجوه فهما واحد وكلاهما مشرك بالله. (أضواء البيان للشنقيطي ٧ /١٦٢): **ژباړه:** د اللهﷻ سره په واک کې برخه دار جوړول او د هغه سره په عبادت کې برخه دار جوړول دا ټول په يوه معنا دي د دې دواړو تر منځ هيڅ توپير نشته نو هغه کس چې د اللهﷻ له قانون پرته د بل چا د قانون تابعداري کوي د هغه کس په څېر دی چې د بت عبادت کوي او بت ته سجده کوي، تر منځ يې له هيڅ اړخه توپير نشته دواړه په يو څېر دي او دواړه د الله سره برخه دار جوړونکي دي.

نو له دې څخه دا خبره معلومه شوه چې واک يوازې د اللهﷻ دی. څوک چې د اللهﷻ سره په واک، اختيار کې بل څوک شريکوي، که ولس وي، که د پارلمان غړي وي، که تقنيني قوه وي يا نور، دا د اللهﷻ سره شرک کوي چې په ډيموکراسۍ کې دغه شرک واضحه دی. په هره مسئله کې د ولس واک چلېږي په تحليل تحريم کې،

په جزاء او عقوبت کې، او هم د ژوند په نورو اړخونو کې، نو له دې وجې ډیموکراسي یو کفري قانون دی چې هېڅکله د اسلام سره نه جمعه کېږي.

## ۲) دویمه خبره:

د واک سوله ییز لېږد یا انتقال، یعني د ټاکنو له لارې واک ته رسېدل، د ډیموکراسۍ دا اصل د اسلام له ځینو اصولو سره ټکر لري چې بیان یې په دې ډول دی:

**۱ـ د دې اصل:** په اساس هر کافر او مشرک کولی شي د زیاتو رایو په تر لاسه کولو سره د مسلمانانو مشر شي، هغه چې په شریعت کې یې مشري حرامه ده ځکه اللهﷻ فرمایي: وَلَنْ يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكَافِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا (سورة النساء:۱۴۱) **ژباړه:** اللهﷻ کافرانو ته په مسلمانانو باندې هېڅ کومه لار د برلاسه کېدو نه ده جوړه کړې. او په حدیث کې دي: «الإسلام يَعْلُو ولا يُعْلَى». [حسن]ـ [رواه الدارقطني ۳۶۲۰] - **ژباړه:** اسلام به اوچت وي او بل شی به ورباندې لپاسه نه وي یعني اسلام به مغلوب نه وي.

**۲ـ یوه ښځه هم د واک سوله ییز** لېږد له لارې مشرۍ ته رسیدلی شي حال دا چې په شریعت کې ښځه د قضاء او مشرئ اختیار نه لري نبي علیه السلام فرمایي: لن يُفْلِحَ قومٌ ولَّوْا أمرَهَمُ امرأَةً، (أخرجه البخاري: ۴۴۲۵) - **ژباړه:** هېڅکله به هغه قوم برلاسی نشي چې خپله مشري یې ښځې ته سپارلې وي.

**۳ـ د واک سوله ییز** لېږد لپاره په ټاکنو کې کافر، مشرک او یوې ښځې ته هم د رای اچونې حق حاصل وي، هغه چې په شریعت کې یادو کسانو ته دغه حق نه دی ورکړل شوی.

**۴ـ د دغه اصل** په اساس د کافر حاکم په خلاف جهاد لغوه کېږي، حال دا چې په شریعت کې د کافر حاکم په خلاف جهاد فرض دی او په دې د مسلمانانو اجماع ده چې دغه اجماع قاضي عیاض رانقل کړې هغه ویلي دي:

فلو طرأ عليه كفر وتغيير للشرع أو بدعة خرج عن حكم الولاية وسقطت طاعته ووجب على المسلمين القيام عليه وخلعه ونصب إمام عادل إن أمكنهم ذلك فإن لم يقع ذلك إلا لطائفة وجب عليهم القيام بخلع الكافر [شرح مسلم للنووي: ١٢/ ٢٢٩].

**ژباړه:** که چېرې په (حاکم) کې وروسته کفر او د شریعت د احکامو بدلول یا بدعت (مکفره) راښکاره شو؛ د مشرۍ حکم نه ووت، طاعت یې ختم شو او په مسلمانانو د هغه په خلاف راپاڅېدل او له مشرۍ څخه لرې کول یې واجب دي او بل عادل امام مقررول واجب دي .که چېرې ورته د دې امکان و، خو که دا کار ټولو مسلمانانو نشو کولی مگر یوې ډلې کولی شو نو په هغوی واجب دي چې د کافر حاکم د لرې کولو لپاره پاڅون وکړي.

دا خو یې اسلام سره د خلاف لاملونه وو. اوس یې د کفر لاملونه ذکر کوو:

## د دغه ډیموکراتیک اصل د کفر لاملونه په دې ډول دي:

**۱ـ د واک سوله ییز** لېږد کفر ته رسول کوي، ځکه چې په دې سره قانون سازان ټاکل کېږي چې د آلهه وو په معنا دي، ځکه قانون سازي د الله ﷻ ځانگړی صفت دی بل چا ته یې ثابتول شرک دی.

شیخ شنقیطي رحمه الله وايي: ويفهم من هذه الآيات، كقوله: وَلَا يُشرك في حكمه أحدا، أن متبعي أحكام المشرعين غير ما شرعه الله أنهم مشركون بالله اهـ.[أضواء البيان في إيضاح القرآن بالقرآن ٣/٢٥٩]. ژباړه: او له دې ایتونو څخه چې الله ﷻ فرمايي: او الله ﷻ په حکومت کې څوک نه شریکوي؛ دا فهمیږي کوم خلک چې د الله ﷻ د قانون په خلاف د قانون سازانو په حکمونو پسې روان وي؛ دوی د الله ﷻ سره شرک کوي.

**۲ـ د واک په سوله ییز لېږد** کې د کفر ځیني پراونه عملي کېږي چې بیان یې په دې ډول دی:

## اول پړاو: الموافقة على الدستور، په قانون موافقه کول:

نو د واک په سوله ییز لېږد کې د هیواد په کفري قانون موافقه راځي چې پرته له موافقې امکان نه لري، یعني کله چې واک په سوله ییز ډول له یو کس څخه بل کس ته لېږدول کېږي نو د هیواد د کفري قانون سره سم لېږدول کېږي چې دا غټ کفر دی.

شیخ الاسلام ابن تیمیه رحمه الله وایي:

ومعلوم بالاضطرار من دين المسلمين وباتفاق جميع المسلمين أن من سوغ اتباع غير دين الإسلام، أو اتباع شريعة غير شريعة محمد ﷺ فهو كافر، وهو ككفر من آمن ببعض الكتاب وكفر ببعض الكتاب. مجموع الفتاوى (٢٨/ ٥٢٤)

**ژباړه:** له اسلام دین څخه په اضطراري توګه او په اتفاق د ټولو مسلمانانو دا خبره معلومه (ثابته) ده: چا چې له اسلامي دین څخه پرته د بل دین تابعداري جائز کړله یا یې د محمد ﷺ له شریعت څخه پرته د بل چا د شریعت تابعداري جائز کړله، نو دا به کافر وي پشان د کفر د هغه چا چې ایمان یې په ځینې برخه د کتاب راوړی وي او په ځینې برخه یې کفر کړی وي.

## دویم پړاو: الإیمان بالتعددیة الحزبیة:

په ګوندیزه یا ټول شموله نظام باور لرل. نو څوک چې په سوله ییز ډول د واک لېږد ته قایل وي، هغه به خامخا په ټول شموله نظام باور لري چې بېلا بېل ګوندونه یکې شتون ولري او دا د کفر لامل دی ځکه چې په دې سره هر ډول ګوند ته په ملک او نظام کې د فعالیت اجازه ورکول کېږي، که څه هم کفري ګوند هم وي چې د روافضو، سیکولرانو، کمونستانو، یهودو او نصاراو ګوند وي.

هغوی ته د بیان آزادي، د دعوت آزادي، د رسنیو آزادي ورکول کېږي، چې دا د ولاء براء عقیدې خلاف، د شرعي سیاست خلاف او د صریحو نصوصو خلاف کار دی

او هم د هغوی کفر ته لاره هواره ول او د هغوی سره په کفر کې همکاري کول دي چې صریح کفر دی.

## دریم پړاو : اليمين الدستوري:

د قانون په عملي کولو او هغې ته په وفادارۍ او دفاع لوړه کول، د واک له سوله ییز لیږد وروسته ولسمشران د یو هیواد نافذه شرکي قوانینو ته د وفادارۍ لوړه کوي چې دا غټ کفر دی ځکه د الله د دین په مقابل کې د بل دین په منلو او تطبیقولو لوړه کول دي. هغه دین چې له بوت پاله اروپا څخه یې اسلامي نړۍ ته سرایت کړی، چې خپل ځانګړي اصول او احکام لري، خپل حل او حرم لري، خپل کتاب او پیغمبر لري. د اسلام له مبین دین سره هیڅ تړاو نه لري، نه د عقیدې په اصل کې، نه د بیان ازادۍ او نه د شخصي یا فردي ازادۍ او نه د مساوات په اصولو کې او نه هم په ټولنیز، اقتصادي، مدني او جزایي اصولو کې، او نه د واکمن په ټاکلو او معزول کولو کې او نه د سیاست په باب کې؛ په دې هیڅ کې د اسلام سره تړاو نه لري.

## څلورم پړاو: الحکم بالدستور وبالقانون. په قانون فیصله کول:

دغه کاندیدان چې کله د سوله ییز لیږد ټاکنو په توسط پرلمان او یا ولسمشرۍ ته ورسیږي نو په وضعي قانون فیصله کوي او ټول مسایل د وضعي قانون په رڼا کې حل کوي، او په وضعي قانون فیصله کول خو کفر دی چې په اړه یې ډیر دلایل موجود دي الله ﷻ فرمایي: فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِيٓ أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا [سُورَةُ النِّسَاء : ٦٥]-

**ژباړه:** نه، ای محمد ﷺ ! ستا په رب قسم چې دوی هیڅکله مؤمنان کیدای نه شي، تر څو چې په خپل منځي شخړو کې تا فیصله کوونکی ونه مني. بیا چې ته څه فیصله وکړې، پر هغې باندې په خپلو زړونو کې هم څه تنګي احساس نه کړي؛

بلکي سر تر پايه يې ومني.

نور هم ډېر ايتونه په دې اړه شته، خو مونږ به د ځيني سلفو علماوو په اقوالو رانقلولو بسنه وکړو: شيخ شنقيطي رَحِمَهُ اللهُ په خپل کتاب أضواء البيان کې د سورة الكهف د ايت په تفسير کې وايي: وأما النظام الشرعي المخالف لتشريع خالق السماوات والأرض: فتحكيمُه كفرٌ بخالق السماوات والأرض، كدعْوى أن تفضيل الذكَر على الأنثى في الميراث ليس بإنصاف، وأنهما يلزم استواؤهما في الميراث، وكدعْوى أن تعدد الزوجات ظلم، وأن الطلاق ظلمٌ للمرأة، وأن الرَّجم والقَطع ونحوَهما أعمالٌ وحشيةٌ، لا يَسوغ فِعلها بالإنسان، ونحو ذلك..! **ژباړه:** او هغه شرعي نظام چې د ځمکې او اسمانونو د پيدا کوونکي ذات د قانون خلاف وي؛ حاکمول يې په هغه ذات کفر کول دي چې ځمکه او اسمانونه يې پيدا کړي دي، لکه داسې دعوه کول چې نارينه ته په ميراث کې له ښځې څخه زياته برخه ورکول انصاف نه دی، او دوی دواړه (سړی او ښځه) ته به په ميراث کې يو شان برخه ورکول لازم وي او يا داسې دعوه کول چې ډېر نکاحونه کول ظلم دی او ښځې ته طلاق ورکول ظلم دی او د زاني (زنا کوونکي) رجم کول او له غل څخه لاس غوڅول او د دې پشان نور حدونه نافذول د وحشت کړنې دي چې له يو انسان سره داسې او دې ته ورته (مشابه) کړنې ترسره کول جائز نه دي. بيا وايي:

فتحكيمُ هذا النوع من النظام في أنْفُس المجتمع، وأموالهم، وأعراضهم، وأنسابهم، وعقولهم، وأديانهم؛ كفرٌ بخالق السماوات والأرض، وتمَرُّد على نظام السماء، الذي وضعه مَن خلقَ الخلائق كلَّها، وهو أعلمُ بمصالحها، سبحانه وتعالى عن أن يكون معه مُشرِّع آخر علوًّا كبيرًا [أضواء البيان ٣ /٣٦٠].

**ژباړه:** و دا ډول نظام د خلکو په نفسونو، مالونو، عزتونو، نسبونو، عقلونو او دينونو حاکمول، په هغه ذات کفر کول دي چې ځمکه او اسمانونه يې پيدا کړي دي او له

هغه اسماني نظام څخه سرکښي کول دي چې د مخلوقاتو پيداکوونکي وضع کړې دی او هغه ذات د مخلوق په ګټو ښه پوهېږي، پاک دی هغه او لوړ دی له دې چې له هغه سره بل قانون جوړونکی شريک شي په لوړوالي ډېر سره.

شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله د هغه چا په اړه چې په يوه مسئله کې د الله عزوجل او د هغه د رسول ﷺ حکم پرېږدي او د يو حاکم هغه قول پسې ځي چې د قرآن او حديث خلاف وي؛ وايي: ومَتى ترك العَالِمُ ما عَلِمَه، من كتاب الله، وسُنَّةِ رسولِه، واتَّبع حُكمَ الحاكمِ المُخالف لحُكم اللهِ ورسِوله كان مرتدا كافرًا يَستحقُّ العقوبةَ في الدنيا والآخرة، قال تعالى: المص. كِتابٌ أُنْزِلَ إِلَيْكَ فَلاَ يكُنْ في صَدرِكَ حَرَجٌ مِنْهُ لِتُنْذِرَ بِهِ وَذِكْرَى للمُؤْمنينَ. اتَّبِعوا ما أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ وَلاَ تَتَّبِعوا مِنْ دونِهِ اولياءَ قَلِيلاً ما تَذَكَّرونَ [الأعراف: ١، ٢، ٣] [مجموع الفتاوى ٣٥/ ٣٧٢]. **ژباړه:** او کله چې يو عالم د قرآن او حديث يو معلوم حکم پرېږدي او د يو حاکم امر پسې روان شي چې د قرآن او حديث خلاف وي نو دا به مرتد، کافر وي چې په دنيا او اخرت کې به د سزا مستحق وي. الله عزوجل فرمايي: (المص. دا يو کتاب دی چې تا ته درلېږل شوی دی، نو (اې محمد ﷺ)ستا په زړه کې دې له دې څخه څه انديښنه نه وي. د دې له نازلولو څخه هدف دا دی چې ته د دې په وسيله (منکران) ووېروې او د مؤمنانو لپاره يادونه وي. ای خلکو! څه چې ستاسې د رب له لوري پر تاسې نازل شوي دي، د هغو پيروي وکړئ او له خپل رب څخه پرته د نورو سرپرستانو پيروي مه کوئ. خو تاسې نصيحت ډېر لږ منئ.

## پنځم پړاو: وضع التشريعات للمستجدات:

**اول:** د نوو راپيدا شويو موضوعاتو لپاره قانون سازي کول. د دوی کانديد چې کله د سوله ييز لېږد له لارې پارلمان ته ورسېږي نو هلته بيا دوه وظيفې اجراء کوي يو: د نويو راپيدا شويو مسايلو لپاره قوانين جوړوي چې دغه قوانين د ولسمشر له

لوري توشيح کېږي او د اجرائيه قوې له لوري په هيواد کې تطبيقيږي.

**دويم:** د قانون د تطبيق څار کوي، چې دا وظيفې يې د قانون په کتابونو کې ذکر دي. نو دا خو معلومه خبره ده چې دوی هېڅکله د شريعت موافق قوانين نه تصويبوي بلکې د شريعت خلاف قوانين تصويبوي هغه چې صريح کفر دی او د اللهﷻ سره د حاکميت په صفت کې ځان شريکول دي چې مخکې ورته اشاره شوې ده.

**الغرض:** په دې هکله ځيني نور کفري پړاونه هم شته چې د واک د سوله ييز لېږد نه وروسته يې ترسره کوي خو مونږ يې د موضوع د اوږدوالي له وجې پرېږدو که غواړئ چې تفصيلي معلومات تر لاسه کړئ نو له العزائم اداري څخه خپور شوی کتاب إمعان النظر في منهج أدعياء السلفية المعاصرة ص ٥٠٧ ته رجوع وکړئ هلته د دې موضوع ښه وضاحت شوی دی مونږ دلته په لنډه توګه د خپلې موضوع سره سم په مناسب تصرف او جلا تعبير دغه بحث رانقل کړ.

### دريمه خبره:

د واکونو جلا کول، د دې هدف دا دی چې دين د نظام نه جلا شي او د نظام د کارونو سره هېڅ اړيکه ونه لري.

١. دين يوازې په ځينو فردي يا شخصي کارونو پورې رابند شي، مدرسې او جومات پورې رابند شي، نکاح، جنازه او ځينو نورو کارونو پورې رابند شي چې دې ته علمانيت يعني سيکولريزم ويل کېږي، دغه سيکولريزم چې اسلامي نړۍ ته د کفارو له خوا راداخل شوی اساسي هدف يې دا هم دی چې مسلمانان د خپل دين نه لرې پاتې شي او د شرک او اخلاقي فساد ښکار شي، چې دا لوی کفر دی ځکه چې دين د ژوند د چارو د حل لپاره راغلی، دغه چارې که شخصي وي او که ټولنيزې وي، که ملکي وي او که نظامي وي، د ټولو حل په کې پروت

دی بلکې د ژوند نه وروسته چې انسان د کوم حالت سره مخ کېږي، چې د قبر او د حشر احوال دي، د هغې حل هم په کې پروت دی، خو د ډيموکراسی د دغه اصل په اساس اسلام د ژوند له ډېرى چارو څخه معطل شوی او محدود شوی دی نو له دې وجې دا يو کفري اصل دی چې د اسلام سره هېڅ تړاو نه لري.

## څلورمه خبره:

د قضائيه قوې خپلواکي، د دې هدف دا دی چې د قضا قوه چې کومه فيصله صادروي هغه به په خپله فيصله کې خپلواکه وي او د هېچا د اغېزې لاندې به نه وي تر دې که د الله او د رسول د خبرې خلاف هم په کې شوی وي، په دوی به يې هېڅ اغېزه نه وي بلکې دوی به د خپل کفري قانون سره سم ازادانه پرېکړې کوي او مخې ته به يې هېڅ شی خنډ نه واقع کېږي.

نو د دې کفر هم واضحه دی ځکه چې يو خو د الله ﷻ د قانون په خلاف په بل قانون فيصله کول دي چې دا واضح کفر دی او بل دا چې ځان په خپلو فيصلو کې خپلواکه ګڼل دي او د خپل ځان لپاسه د الله او د رسول واک نه منل چې دا هم کفر دی. الله ﷻ فرمايي: وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُ أَمْرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ ۗ وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَالًا مُّبِينًا [سُورَةُ الأحزَاب: ٣٦]. **ژباړه:** هېڅ يو مؤمن او هېڅ يوه مؤمنه دا حق نه لري چې کله الله او د هغه رسول ﷺ د کومې معاملې فېصله وکړي او بيا **(د الله او د هغه د رسول په خلاف)** هغه پخپله د خپلې هغې معاملې د فېصله کولو اختيار ولري. او څوک چې له الله او د هغه له رسول څخه سرغړاوی وکړي، نو هغه په څرګنده ګمراهۍ کې وغـــورځېدی.

نو دا ايت دليل دی چې انسانان په خپلو فيصلو کې خپلواکه نه دي بلکې د دوی فيصلې به د الله او د هغه د رسول د فيصلو تابع وي، د هغې موافق به وي او هغه به يې اصلي سرچينه وي، د هغې خلاف به نه وي چا چې خلاف وکړو نو هغه به غټ گمراه وي.

## پنځمه خبره:

بشري حقونو ته درناوی، دا د ډيموکراسۍ بل مهم اصل دی چې له دې پرته ډيموکراسي په عملي بڼه نشي لېدل کېدای، خو بشري حقونه څه ته وايي؟

نو د ملگرو ملتونو په اصطلاح بشري حقونه د انسان هغه ميراثي حقونو ته وايي چې په مساوي ډؤل له تبعيض، او د نژاد، جنسيت، مليت، توکم، ژبې، مذهب، يا کوم بل توپير پرته؛ ټول انسانان يې يو شانته حقدار وي چې په کې د ژوند او ازادۍ حق، له غلامۍ او شکنجې څخه آزادي، د نظر او بيان آزادي، د عقيدې آزادي، د رسنيو آزادي، د کار او زده کړې حق او داسې نور حقوق شامل دي.

دغه حقونه د ملگرو ملتونو له خوا په کال **۱۹۴۸م** کې په يوې خپرې شوې اعلاميه کې چې په ديرش **۳۰ مادو** مشتمله ده، ذکر شوي دي، چې بيا وروسته په کې نور حقونه هم وراضافه شوي دي. لکه د همجنسبازۍ حق، د جنسيت بدلولو حق او داسې نور. خو بل لور ته د حقوق **بشر** اداره د ملگرو ملتونو سازمان د اهدافو سره په ټکر کې حقونو کارول منعه کوي.

**نوالغرض:** د بشري حقونو نه هماغه حقونه او ازادۍ مراد دي کومې چې د نړۍ کفارو بشر ته ورکړي دي، چې سرچينه يې د دوی فکرونه او رای گانې دي، نه قران او حديث. نو په ډيموکراسي نظام کې د دغه حقونو او ازاديو درناوی مطلوب دی چې په نتيجه کې يې د ښځې او نارينه تر منځ فرقونه ختميږي مساوات رامنځته

کېږي. یعني ښځه د نارینه سره په ټولو حقونو کې مساوي ګڼل کېږي، او همداراز شرعي حدود په کې له منځه ځي پر ځای یې د انسانانو وضعه کړې سزاګانې رامنځته کېږي او هم د ولاء براء عقیده په کې له منځه ځي، پر ځای یې د هر کافر او ملحد سره دوستانه اړیکو ته لاره خلاصېږي چې دا د قران او حدیث د احکامو: انکار، تکذیب او تعطیل ته رسول کوي، چې په اجماع د امت کفر دی امام اسحاق بن راهویه ﷫ وایي: أجمع المُسلِمون على أنَّ من سبَّ اللهَ، أو سبَّ رسولَه ﷺ أو دفع شيئًا مما أنزل اللهُﷻ، أو قتل نبيًّا من أنبياءِ اللهِ: أنَّه كافِرٌ بذلك، وإنْ كان مُقِرًّا بكلِّ ما أنزل اللهُ .يُنظر: (الصارم المسلول) لابن تيمية (٢/١٥).

**ژباړه:** د مسلمانانو په دې اجماع ده چې څوک الله ته کنځلې وکړي(سپکاوی یې وکړي) یا د هغه رسولﷺ ته کنځلې وکړي او یا د اللهﷻ یو رالېږلی حکم رد کړي او یا یو نبي له انبیاؤ څخه ووژني، نو دا کس په دې سره کافر کېږي، که څه هم د الله ﷻ په ټولو احکامو اقرار هم کوي.

## شپږمه خبره:

په ټولو د قانون واکمني، دا د ډیموکراسۍ بل اصل دی، مقصد یې دا دی چې د دوی جوړ کړی قانون به په ټولو خلکو یو شانته واکمن وي.

داسې به واکمن وي لکه څنګه چې اللهﷻ واکمن دی. هېڅوک به ترې مستثنا نه وي، د نظام اساسي سرچینه به یې همدغه قانون وي چې د ژوند په ټولو چارو کې به ورته رجوع کېدلی شي او د یو معبود په توګه تابعداري به یې کېدلی شي چې خلاف به ورڅخه نشي کېدای. نو دا خو معلومه خبره ده چې دغه قانون د توحید ضد دی، د نبيﷺ د رسالت د ګواهۍ ضد دی نو تابعداري یې کفر ده.

دا د ډیموکراسۍ تعریف و چې د هرې جملې د وضاحت نه یې مونږ ته کفر راڅرګند شو او دې پایلې ته ورسېدو چې ډیموکراسي یو مستقل دین دی، خو کفري دین

دی، چې د اسلام سره په هېڅ وخت کې نه جمعه کېږي. نو اوس مقصود ته راځو او هغه دا چې آيا جهاد او ډيموکراسي جمعه کېږي؟ يعني کومې ډلې چې د جهاد دعوې ترځنګ د ډيموکراسي او پارلماني نظامونو قائلې دي چې د قيام او پياوړتيا لپاره يې جنګېږي، او ډؤل ډؤل قربانيانې ورکوي ايا دوی په ريښتيا هم مجاهدين دي؟ جنګ يې د الله په لاره کې دی او که نه؟ او دغه جنګ ته يې د جهاد نوم ويل صحيح دي او که نه؟

نو د دې په ځواب کې ډېر په ساده ټکو داسې ويلی شو چې: دغه خلک مجاهدين نه دي. د دوی مبارزه د الله په لاره کې نه ده، د دوی جنګ ته د جهاد نوم ويل صحيح نه دي دا ځکه چې جهاد او ډيموکراسي نه جمعه کېږي. جهاد او سيکولريزم نه جمعه کېږي يعني داسې نشي کېدای چې يو سړی دې په الله ايمان لرونکی وي، مجاهد دې وي، او هم دې د ډيموکراسي منونکی وي، دا هېڅکله په يو زړه کې نه جمعه کېږي، ځکه ډيموکراسي يو کفري دين دی چې د يو انسان په زړه کې نشي راتلی مګر وروسته له هغې چې د ايمان نه کنګال شي. وروسته له هغې چې په ځمکه کې ګڼ آلهه ومني، وروسته له هغې چې د الله د قانون تغيير او تبديل ومني ـ العياذ بالله ـ چې دا د مسلمان د شان سره نه ښايي، مونږ ته د جهاد له شرطونو څخه دا خبره جوته شوه چې د جهاد لپاره له هر څه مخکې اسلام شرط دی، د توحيد عقيده ورله شرط ده، خو څوک چې د جهاد او نورو شعائرو تر څنګ ډيموکراسي هم مني، نو د هغه اسلام او عقيده له ډېرو وجهو ماته ده چې ځيني يې په دې ډؤل دي :

## اوله وجه:

**اوله وجه داده چې دغه کس د الله سره په عبادت کې برخه دار جوړوي.**

داسې چې د اللهﷻ قانون منل او فيصله ورته وړل عبادت دی، د اللهﷻ د دې امر تابعداري ده. چې فرمايي: فَإِن تَنٰزَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الأخِرِ- ذٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا [سُورَةُ النِّسَاء : ٥٩] -

**ژباړه:** که ستاسې تر منځ په کومه چاره کې شخړه پيښه شي؛نو هغه د الله او رسول لوري ته محوله (وړاندې) کړئ. که تاسې په رښتيا سره پر الله او د اخرت په ورځ ايمان لرئ، همدا د کار يوه سمه طريقه ده او د عاقبت په اعتبار هم غوره ده.

خو څوک چې د اسماني قانون پر ځای ځمکنی قانون مني او فيصله ورته وړي نو هغه د الله سره په عبادت کې برخه دار جوړوي ځکه د عبادت مفهوم يوازې تر مونځ، روژې، زکات، حج او نذر رابند نه دی، بلکې عبادت د انسان د ژوند ټولو چارو سره اړيکه لري .که انفرادي وي، که اجتماعي وي، که سياسي، اقتصادي او نور وي ،ټولو سره اړيکه لري ځکه د عبادت تعريف ډېر عام او شامل دی، شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله په خپله رساله **"العبودية"** کې ويلي دي: العبادة هي اسم جامع لكل ما يحبه الله ويرضاه من الأقوال والأعمال الباطنة والظاهرة، (رسالة العبودية لابن تيمية ص٣٨) - **ژباړه:** عبادت يو جامع نوم دی هر هغه څه ته شامل دی چې اللهﷻ يې خوښوي او پرې راضي کېږي. که وينا وي او که کار وي، که پټ وي که ښکاره وي. نو له دې وجې عبادت يوازې تر يو څو شعائرو رابندول او نور ډؤلونه يې ترې ويستل هيڅ انصاف نه دی الله ﷻ فرمايي:

قُلْ إِنَّ صَلَاتِي وَنُسُكِي وَمَحْيَايَ وَمَمَاتِي لِلَّهِ رَبِّ الْعٰلَمِينَ [سُورَةُ الأنعَام : ١٦٢] -

**ژباړه:** ووايه: زما لمونځ، زما مالي عبادت، زما ژوند او زما مرگ، هر څه د کائيناتو د پالونکي اللهﷻ لپاره دي. نو يوازې ژوند نه بلکې مرگ به دې هم عبادت وي. نو

لکه څنګه چې عبادت: مونځ، روژه، منښته او نورو شعائرو ته شامل دی، همداسې تحکیم او تحاکم ته هم شامل دی چې دا هم عبادت دی او لکه څنګه چې دغه شعائر د الله نه سوا بل چا ته اړول حرام او شرک دی نو همداسې د بل چا قانون منل یا ورته فیصله وړل هم حرام او شرک دی د دواړو تر منځ هیڅ توپیر نشته، د شرک له دغو دواړو ډولونو څخه په یو سورت کې منعه راغلې چې سورت الکهف دی، د شرک في العبادة نه په دې ایت کې منعه راغلې چې فرمایي:

وَلَا يُشْرِكْ بِعِبَادَةِ رَبِّهِۦٓ أَحَدًا [سُورَةُ الكهف : ١١٠] **ژباړه:** او په بنده ګۍ کې دې له خپل رب سره بل څوک شریك نکړي.

او د شرک في الحکم نه په دې ایت کې منعه راغلې چې فرمایي:

وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِۦٓ أَحَدًا [سُورَةُ الكهف: ٢٦]- **ژباړه:** او اللهﷻ په خپل حکومت کې څوک نه شریکوي.

په قرائت د ابن عامر کې چې یو له لسو قرائتونو څخه دی داسې راغلي دي: ولا تُشرِكْ في حکمه أحدا. په صیغې د نهي مخاطب سره دغه منعه راغلې. نو د اللهﷻ سره په شعائرو کې څوک شریکول او یا ورسره په حاکمیت کې څوک شریکول یو شانته شرک دی تر منځ یې هیڅ توپیر نشته. لکه څنګه چې شیخ شنقیطي رحمه الله ویلي دي چې قول یې مخکې ذکر شو.

❖ **دویمه وجه:**

**د جهاد په نوم راپورته شویو ډیموکراتو ګوندونو د کفر دویمه وجه دا ده:**

چې دوی ته د نبي علیه السلام د فیصلو نه د بل چا فیصلې ښائسته ښکاري، نو ځکه خو یې د تحکیم لپاره جنګېږي او په زړه کې ورته ځای ورکوي، چې دا ناقض په دوی کې ډېر واضحه دی، دوی د نبيﷺ فیصلې نه خوښوي، د توحید قیام نه خوښوي، شرعي حدودات نه خوښوي، نو ځکه خو د شرعي قانون پر ځای د ډیموکراسی

قانون ته ترجیح ورکوي، د ملګرو ملتونو پرېکړو ته ترجیح ورکوي الله ﷻ فرمايي:
الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا [سُورَةُ المَائدة:٣]
**ژباړه:** نن ما ستاسې دين، ستاسې لپاره بشپړ کړ او خپل نعمت مې پر تاسې پوره کړ. او ستاسې لپاره مې اسلام ستاسې د دين په توګه منظور کړ.
نو الله ﷻ د ټولو انسانانو لپاره د اسلام دين غوره کړی دی او اسلامي قانون يې ورته غوره کړی دی ځوک چې دا قانون پرېږدي او پر ځای يې بل قانون ته ترجيح ورکوي او يا يې غوره ګڼي نو هغه غټ کافر دی، نبي عليه السلام د حجة الوداع په خطبه کې فرمايلي وو: أما بعد فإن خير الحديث كتاب الله وخير الهدي هدي محمد، أخرجه مسلم. **ژباړه:** له دې وروسته يقيناً تر ټولو غوره خبره د الله کتاب دی او تر ټولو غوره طريقه د محمد ﷺ طريقه ده.
نو هر کله چې د الله کتاب او د نبي ﷺ خبرې تر ټولو غوره دي نو بل قانون پرې غوره کول کفر دی چې هېڅ شک په کې نشته.

## ❖ دريمه وجه:

### هغه ګوندونه چې د جهاد دعوې ترڅنګ ډيموکراسۍ قانون هم مني، د کفر دريمه وجه يا دريم ناقض يې دادی:

چې دوی د کافرانو سره په تولّي کې اخته دي ځکه د تولّي يوه معنا د کافرانو د قانون تابعداري کول دي نو ځوک چې د کفارو سره د هغوی په قانون کې موالات کوي هغه کافر دی او د دې ايت عموم ورته شامل دی چې الله ﷻ فرمايي :
يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ- بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ- وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ اللهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِينَ [سُورَةُ المَائدة: ٥١]،

**ژباړه:** اې مؤمنانو! یهودیان او عیسویان خپل ملګري مه نیسئ، دوی په خپلو منځو کې سره ملګري دي. او که ستاسې څخه څوك هغوی خپل ملګري نیسي، نو بیا هغه هم په هماغو کې شمېرل کېږي. په دي کې شك نشته چې الله ظالمان له خپلي لارښووني څخه بې برخې کوي.

## ❖ څلورمه وجه:

**د ډیموکراټو ګوندونو د کفر څلورمه وجه دا ده:** چې دوی د اللهﷻ د شریعت سره کینه لري او هېڅکله نه غواړي چې د اللهﷻ شریعت حاکم شي، شرعي حدودات نافذ شي بلکې شرعي حدوداتو ته د ناوړه سزاګانو په سترګه ګوري چې دا هم لوی کفر دی اللهﷻ فرمایي: وَالَّذِينَ كَفَرُوا فَتَعْسًا لَّهُمْ وَأَضَلَّ أَعْمَٰلَهُمْ؛ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَرِهُوا مَآ أَنزَلَ اللَّهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَٰلَهُمْ[سُورَةُ محَمَّد: ۹، ۸]. **ژباړه:** هغه کسان چې کافر شوي دي، د هغوی لپاره هلاکت دی او الله د هغو عملونه ضایع کړي دي؛ ځکه چې هغوی د الله ناز کړي احکام بد وګڼل نو عملونه یې ورله برباد کړل.

## ❖ پنځمه وجه:

دوی د اعراض په کفر کې اخته دي،ځکه د اللهﷻ د شریعت او قانون نه یې مخ اړولی دی، د توحید او شرك نه ځان نه خبروي او نه پرې عمل کوي، د دین د اساسي احکامو نه ځان نه خبروي او نه پرې عمل کوي.

اللهﷻ فرمایي: وَالَّذِينَ كَفَرُوا عَمَّآ أُنذِرُوا مُعْرِضُونَ [سُورَةُ الاٴحقاف : ۳].

**ژباړه:** کافران له هغه څه نه مخ اړونکي دي چې دوی ته یې وېره ورکړې شوې.

علامه ابن القیمؒ په (مدارج السالکین ۳۴۷/۱) کې وایي: هر چې کفراکبر **(غټ کفر)** دی، په پنځه قسمه دی، نو دغه اقسام یې ذکر کړي او بیا یې ویلي دي:

او هر چې د اعراض کفر دی نو دا خپل غوره او زړه اړول دي د پيغمبر نه، چې نه يې ريښتنی ګڼي او نه يې دروغژن ګڼي، نه ورسره دوستي کوي او نه ورسره دښمني، او د هغه راوړي شريعت ته هيڅ غوږ نه نيسي.

### ❖ شپږمه وجه:

**د جهاد په نوم راپورته شويو ډيموکراتو ګوندونو د کفر شپږمه وجه دا ده:**

چې دوی د طائفې ممتنعې په حکم کې داخل دي هغه چې د علماوو په اجماع سره مرتد دي. ځکه چې دوی د قوت لرلو سره سره بيا هم د خپل ځان او د نورو خلکو نه د شريعت مخنيوی کوي، څوک چې ورباندې د شرعي احکامو د تطبيق اراده لري، د هغوی سره جنګيږي. او داسې خلک خو مرتد دي شيخ الاسلام ابن تيميه ﷫ وايي: و أجمع العلماء على أن كل طائفة ممتنعة عن شريعة من شرائع الإسلام فإنه يجب قتالها حتى يكون الدين كله لله كالمحاربين وأولى. (انتهى (الفتاوى الكبرى/ كتاب الحدود). **ژباړه:** د علماو په دې اجماع ده چې هره ډله چې د شريعت له احکامو څخه د يو حکم نه بند شي نو جنګ ورسره واجب دی تر دې چې دين ټول د الله لپاره خاص شي لکه د حربي کافرانو په څېر، بلکې د دوی نه هم د جنګ زيات لائق دي.

### ❖ اوومه وجه:

**د جهاد په نوم راپورته شويو ډيموکراتو ډلو د کفر اوومه وجه دا ده:**

چې دوی په طاغوت کفر نه کوي چې د ايمان اساسي رکن دی، بلکې دوی د ځمکې ډېری طواغيت منلي دي چې تر ټولو ستر طاغوت يې ډيموکراسي قانون دی، حال دا چې الله ﷻ په طاغوت باندې کفر کول د ايمان لپاره شرط ذکر کړی دی فرمايلي دي: وَلَقَدْ بَعَثْنَا فِي كُلِّ أُمَّةٍ رَّسُولًا أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ وَاجْتَنِبُوا الطَّٰغُوتَ [سُورَةُ النّحل: ٣٦]

**ژباړه:** موږ په هر اُمت کي یو پیغمبر پیدا کړ (ولېږی)، او د هغه په وسیله مو ټول خبر کړل چې: د الله بندګي وکړئ او د طاغوت له بندګی څخه ځان وژغورئ.

او په بل ایت کې فرمایي:

وَالَّذِينَ اجْتَنَبُوا الطَّٰغُوتَ أَن يَعْبُدُوهَا وَأَنَابُوٓا إِلَى اللَّهِ لَهُمُ الْبُشْرٰى-فَبَشِّرْ عِبَادِ [سُورَةُ الزُّمَر: ١٧] **ژباړه:** کومو خلکو چې د طاغوت له بنده ګی څخه ډډه وکړه او الله ته یې رجوع وکړه، د هغو لپاره زېری دی. نو اې پیغمبره! زما بندګانو ته زیری ورکړه.

**د دې ایت مفهوم مخالف داسې دی:** کومو خلکو چې له طاغوت څخه ډډه ونکړه بلکې د هغه سره یو ځای پاتې شو، دوستانه اړیکې ورسره وپاللې او تر دې چې د نظام یو جزء یې وګرځېد، د طاغوت د لښکر جنګیالی وګرځېد، نو ده د طاغوت عبادت وکړو او د هغه له عبادت څخه یې ځان ونه ساتلو.

دا د ډیموکراټو ګوندونو د کفر وجوهات شول که د دنیا په هر ګوډ کې وي همدغه یې حکم دی که هر څومره د جهاد او دینداری دعوې هم وکړي، که هر څومره ځانونه د دې امت خواخوږي او اتلان هم معریفي کړي، که هر څومره د دښمن له لورې ځاني او مالي تلفاتو سره مخ شي، وکړېږي، او یا هم په دښمن بر لاسي شي د دوی په اوږو د کفر او د شرک ذلت بار دی او تر هغه له دغه ذلت څخه نشي خلاصېدای تر څو چې یې د ډیموکراسی په شمول په ټولو باطلو آلهه و، په ټولو باطلو معبودانو او په ټولو طواغیتو کفر نه وي کړی او خپل دین ته نه وي راګرځېدلي، نو مسلمانان باید د ډیموکراټ ګوندونو په داعیه او د هغوی په نمائشي جنګ دوکه نشي.

# جهاد ، قومیت او وطنیت!

بل له هغو ډلو څخه چې د جهاد یا سیاسي انقلاب په نوم راپورته شوي او جنګېږي، قومپاله او وطنپاله ډلې دي. دا هغه ډلې دي چې د قومیت او وطنیت عقیده لري، د قوم او وطن ترڅو ته ژمن دي، د اسلامي ارزښتونو پر ځای ملي او وطني ارزښتونو ته اولویت ورکوي، د خاورې دفاع ته اولویت ورکوي، قومي او وطني ورورولۍ ته په اسلامي ورورولۍ اولویت ورکوي، د قوم او وطن لپاره ولاء او براء کوي، د قوم او وطن شعارونه زمزمه کوي او د مبارزې اصلي عامل يې قوم او وطن وي. نو آیا داسې خلک د الله د لارې مجاهدین دي؟ د دوی دغه مبارزه شرعي جهاد بلل کېږي او که نه؟ د دې د ځواب لپاره مخکې د قومیت او وطنیت شرعي حیثیت او حکم ذکر کول اړین دي، نو وایو:

# په اسلام کې د وطنیت او قومیت حکم!

که څه هم د قوم او وطن سره مینه فطري ده چې انکار ورځخه نشي کېدای خو دغه مینه چې کله د الله او د هغه د رسولﷺ په مینه لپاسه شي په دې توګه چې قومي او وطني ارزښتونو او اساساتو ته په اسلامي ارزښتونو او اساساتو ترجیح ورکړل شي، ولاء براء عقیده په کې له منځه لاړه شي، مرتدین په کې په قومي او وطني ورونو سره ونومول شي، د مسلمانانو تر منځ په ژبې، سمت او وطني کرښو جدایي راشي، اسلامي خواخوږي په وطني او قومي خواخوږۍ بدله شي، د مرتدینو په مقابل کې سپېڅلي جهاد ته د ورور وژنې نوم ورکړی شي او داسې نور، نو دا ډول مینه د قوم او وطن سره حرامه او د قومپالنې او وطنپالنې تر عنوان لاندې راځي چې په شریعت کې حرامه او د ډېرو نصوصو سره په ټکر کې ده . چې ځیني يې په دې ډول دي اللهﷻ فرمایي:

إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ، [الحجرات:١٠] مؤمنان سره ورونه دي، خو ملتپالنه او وطنپالنه د اسلامي اخوت ضد ده، بل ځای کې فرمايي: يَٰٓأَيُّهَا النَّاسُ إِنَّا خَلَقْنَٰكُم مِّن ذَكَرٍ وَأُنثَىٰ وَجَعَلْنَٰكُمْ شُعُوبًا وَقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوٓا- إِنَّ أَكْرَمَكُمْ عِندَ اللَّهِ أَتْقَىٰكُمْ - إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ [سُورَةُ الحُجرَات : ١٣] **ژباړه:** ای خلکو! موږ تاسې له يوه نارينه او يوې ښځې څخه پيدا کړئ او بيا مو تاسې قومونه او قبيلې وګرځولئ، تر څو چې تاسې يو او بل سره وپېژنئ. په حقيقت کې د الله په وړاندې ستاسې څخه تر ټولو زيات عزتمند هغه څوك دی چې په تاسې کې تر ټولو زيات پرهېزګار وي. په باوري ډول الله په هر څه پوهېدونکی او باخبره دی.

خو ملتپالنه او وطنپالنه د حقيقي تقوی ضد ده. نبيﷺ فرمايي: يا أيها الناس، ألا إن ربكم واحد وإن أباكم واحد،ألا لا فضل لعربي على عجمي، ولا لعجمي على عربي، ولا أحمر على أسود، ولا أسود على أحمر، إلا بالتقوى [رواه أحمد في مسنده حديث رقم: ٢٣٤٨٩]. **ژباړه:** ای خلکو! خبردار، ستاسو رب يو دی، پلار (ادمعليه السلام) مو يو دی، خبردار! د عربي په عجمي او عجمي په عربي هېڅ غوره والی نشته او نه سور په تور او تور په سور څه غوره والی لري پرته له تقوی څخه.

خو په ملتپالنه او وطنپالنه کې د تقوی معيار مات دی، په حديث د بخاري کې راغلي دي چې صحابه يوې غزا ته وتلي وو نو د دوه صحابه وو خپل منځ کې جنګ شو، هر يو خپلې ډلې ته آواز وکړ انصاري انصارو ته او مهاجر مهاجرينو ته آواز وکړ. نبيﷺ چې کله خبر شو نو وې فرمايل: ما بَالُ دَعْوَى الْجَاهِلِيَّةِ؟ قَالُوا: يَا رَسُولَ اللَّهِ كَسَعَ رَجُلٌ مِنْ الْمُهَاجِرِينَ رَجُلًا مِنْ الْأَنْصَارِ فَقَالَ : دَعُوهَا فَإِنَّهَا مُنْتِنَةٌ [رواه البخاري: ٤٩٠٥]. ژباړه: څنګه د جاهليت آوازونه کوئ؟ صحابه ؤ وويل: ای د الله رسوله، يو مهاجر يو انصار د شاه نه په لته وواهه، نبيﷺ وفرمايل: دا چغي پرېږدئ دا بد بويه دي.

نو ملت پالنه او وطنپالنه د جاهليت چغه ده.

امام نوويؒ د مخکې حديث په شرحه کې ليکي: وَأَمَّا تَسْمِيَته صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَلِكَ دَعْوَى الْجَاهِلِيَّة فَهُوَ كَرَاهَة مِنْهُ لِذَلِكَ؛ فَإِنَّهُ مِمَّا كَانَتْ عَلَيْهِ الْجَاهِلِيَّة مِنْ التَّعَاضُدِ بِالْقَبَائِلِ فِي أُمُور الدُّنْيَا وَمُتَعَلَّقَاتها،وَكَانَتْ الْجَاهِلِيَّة تَأْخُذ حُقُوقهَا بِالْعَصَبَاتِ وَالْقَبَائِلِ فَجَاءَ الْإِسْلَام بِإِبْطَالِ ذَلِكَ، وَفَصَلَ الْقَضَايَا بِالْأَحْكَامِ الشَّرْعِيَّة. اهـ. ژباړه:

هر چې نبيﷺ دې ته د جاهليت چغه ويلي دي نو دا يې د دغه کار بد ګڼلو له وجې ويلي دي، ځکه جاهليت والاو به د دنيا په اړوندو کارونو کې په قبيلو سره مرسته حاصلوله او جاهليت والاو به خپل حقونه په خپلو عصبه او قبيلو سره اخستل نو اسلام دا هر څه باطل کړل او مسئلې يې په شرعي احکامو فيصله کړې.

د قومپالنې او وطنپالنې په لار کې وژل شوي د جاهليت مړي دي لکه په حديث د جندب بن عبد الله البجليؓ کې دي: نبيعليه السلام فرمايي:

مَنْ قُتِلَ تَحْتَ رَايَةٍ عِمِّيَّةٍ يَدْعُو عَصَبِيَّةً أَوْ يَنْصُرُ عَصَبِيَّةً فَقِتْلَةٌ جَاهِلِيَّةٌ [رواه مسلم: ۱۸۵۰]. **ژباړه:** څوک چې د ړوند بيرغ لاندې ووژل شو چې عصبيت ته يې خلک رابلل يا يې د عصبيت مرسته کوله نو مرګ يې د جاهليت دی.

قومپالنه او وطنپالنه لوی طاغوت دی چې د الله نه سوا يې عبادت کېدلی شي او دا په دې توګه چې په قومپالنه او وطنپالنه کې ډېری شرعي حدودات مات شوي او تر پښو لاندې شوي لکه د ولاء براء عقيده په کې له منځه تلې، کفارو او مرتدينو سره په کې دوستانه اړيکو ته لاره خلاصه شوې، د شريعت تعطيل ته په کې لاره خلاصه شوې، د قومي او وطني تړو او فيصلو تطبيق ته په کې لاره خلاصه شوې، هر ډول شرک، کفر، بې ديني چې قومي او وطني ګټو ته په کې زيان نه وي لاره خلاصه شوې ده. ځکه د طاغوت تعريف داسې شوی: كل ما تجاوز به العبد حده من معبود أو متبوع أو مطاع، (۱/۵۰ إعلام الموقعين)

ژباړه: هر هغه څه چې بنده په کې د خپل مشروع حد نه تجاوز وکړي که معبود وي، که متبوع وي او که مطاع وي (طاغوت ورته ویل کېږي). نو قوم او وطن هم د وطنپالو او قومپالو له پاره معبود، متبوع او مطاع گرځېدلی چې له امله یې د ډېری مشروع حدونو څخه تجاوز کوي او د اسلام اساسات ړنگوي. هغه چې مخکې ورته اشاره وشوه، که د قومپالو او وطنپالو خبرو ته پاملرنه وشي نو ډېری داسې خبرې ترې نقل دي گواکې نبي ﷺ د قومپالنې او وطنپالنې لپاره راغلی ـ العیاذ بالله ـ نو معلومه شوه چې قومپالنه او وطنپالنه په اسلام کې ځای نه لري. بلکې دا د دې زمانې یو طاغوت دی چې له امله یې ډېری خلک گمراه شوي دي او له اسلام څخه مرتد شوي دي. دوی ته پکار دي چې له خپلې گمراهۍ څخه توبه اوباسي او الله ته راوگرځي.

دا خو د قومپالنې او وطنپالنې شرعي حیثیت او حکم و، له دې څخه مونږ دې پایلې ته ورسیدو چې، ملتپاله او وطنپاله ډلې که څه هم د جهاد دعوه هم کوي، دوی مجاهدین نشي کېدای. د دوی مبارزه د الله په لاره کې نه ده، د الله د کلمې لوړولو لپاره نه ده، بلکې د قوم او وطن کلمې لوړولو لپاره ده، د قومیت او وطنیت جاهلیت اعاده کولو لپاره ده چې دا کار د شرعي جهاد د مفهوم خلاف، د اهدافو خلاف او هم یې د اصولو خلاف دی الله ﷻ فرمایي:

أَفَحُكْمَ الجَاهِلِيَّةِ يَبْغُونَ وَمَن أَحسَنُ مِنَ اللَّهِ حُكما لقوم يُوقِنُونَ [المائدة: ٥٠]-

**ژباړه:** ایا د جاهلیت فیصلې غواړي؟ او څوک دی ډېر ښائسته د الله نه په فیصله کولو کې د پاره د هغه قوم چې یقین کوي.

د دې ایت په تفسیر کې ابن کثیر رحمه الله ویلي دي: ینکر تعالی علی من خرج عن حکم الله المحکم المشتمل علی کل خیر، الناهي عن کل شر وعدل إلی ما سواه من الآراء والأهواء والاصطلاحات التي وضعها الرجال بلا مستند من شریعة الله، کما کان

أهل الجاهلية يحكمون به من الضلالات والجهالات مما يضعونها بآرائهم وأهوائهم، وكما يحكم به التتار من السياسات الملكية المأخوذة عن ملكهم جنكزخان الذي وضع لهم الياسق، وهو عبارة عن كتاب مجموع من أحكام قد اقتبسها من شرائع شتى: من اليهودية والنصرانية والملة الإسلامية وغيرها، وفيها كثير من الأحكام أخذها من مجرد نظره وهواه، فصارت في بينه شرعا متبعا يقدمونه على الحكم بكتاب الله وسنة رسول اللهﷺ، فمن فعل ذلك منهم فهو كافر يجب قتاله حتى يرجع إلى حكم الله ورسوله، فلا يحكم سواه في قليل ولا كثير، ا.هـ. [تفسير ابن كثير ٣/ ١١٩].

**ژباړه:** اللهﷻ د هغه چا بدي بيانوي څوک چې د اللهﷻ له هغه واضح حکم څخه وځي چې په هر خير مشتمل دی، له هر شر څخه منع کوونکی دی، او له دې څخه پرته نورو هغو نظريو، خواهشاتو او اصطلاح ګانو ته ورکوړ شي کوم چې خلکو پرته له شرعي دليل څخه جوړې کړې دي. لکه څنګه چې به د جاهلي زمانې والاو په هغو ګمراهيو او جهالتونو فيصلې کولې کوم چې به دوی په خپلو رايو او خواهشاتو سره جوړ کړي وو او لکه څنګه چې به تاتاريانو په خپل هغه بادشاهي سياست فيصله کوله چې د دوی له بادشاه چنګيز خان چې دوی ته يې الياسق قانون وضع کړی و؛ څخه راخيستل شوی و، دا قانون (**الياسق**) عبارت و له يو داسې کتاب څخه چې د مختلفو شريعتونو احکام په کې راجمع و؛ له يهوديت، نصرانيت او اسلامي ملت او نورو څخه، او په دې کې ډېری داسې حکمونه هم وو چې سوچه يې له خپل نظر او خواهش څخه راختسي وو، دغه قانون د هغوی تر منځ د يو منل شوي شريعت په توګه وګرځېدو چې د اللهﷻد کتاب او د نبي ﷺ د سنتو پر فيصلې يې مخکې کاوه، له دوی څخه چې چا دا کار وکړو هغه به کافر وي، جنګ به ورسره تر هغه وخت واجب وي تر څو چې د اللهﷻ او د هغه د رسول فيصلې ته نه وي راګرځېدلې، د اللهﷻ له قانون پرته بل قانون به په وړه او غټه مسله کې

نه حاکموي.

د ابن کثیر رحمه الله دا فتوه د دې زماني په ملتپاله او وطنپاله ګوندونو پوره تطبیق ده، د دوی هم ټوله مبارزه د قومي او وطني جاهلیت لپاره ده د اسلام لپاره نه ده.

په ملتپاله او وطنپاله ګوندونو کې د اسلام ډېرې نواقض شتون لري چې ځیني یې په دې ډۀل دي:

**اول ناقض:** دوی د شریعت په خلاف د خپلو مشرانو وضعه کړې قومي او وطني ترو ته ژمن دي، هغه چې منل یې شرک دی، ځکه چې د الله سره د حاکمیت په صفت کې برخه دار جوړول دي چې په اړه یې مخکې دلائل ذکر شوي دي.

**دویم ناقض:** دوی هغه چا ته چې په قوم او وطن کې ورسره شریک وي که څه هم بواح کفر ترې هم صادر شوی وي چې اسباب د کفر په کې موجود او موانع یې منتفي وي تکفیر یې نه کوي، بلکې په قومي او وطني ورونو سره یې نوموي. لکه راوفض، سیکولران او صوفیه مشرکان. او دا خو داسې ناقض دی چې انکار ورڅخه نشي کېدای ځکه علماء وایي: **من لم یکفر الکافر أو شک في کفره فهو کافر**. څوک چې کافر ته کافر نه وایې یا یې په کفر کې شک کوي نو دا هم کافر دی. که څه هم په دې قاعده کې تفصیل شته، مطلق نه ده، خو څوک چې د اصلي کافر او یا د هغه مرتدینو تکفیر نه کوي چې کفر یې ښکاره، یقیني او د دین له ضروریاتو څخه ثابت وي، او دا ترې خبر هم لري؛ د هغه په اړه اتفاقي ده.

قاضي عیاض د هغه چا په کفر اجماع نقل کړې چې د بې دینو لکه یهودو، نصارا، مجوسو او نورو، تکفیر نه کوي هغه وایي:

الإجماع على كفر من لم يكفر أحداً من النصارى واليهود ، وكل من فارق دين المسلمين ، أو وقف في تكفيرهم، أو شك [الشفا ٢/ ٢٨١].

**ژباړه:** د هغه چا په کفر اجماع ده چې له نصارا او يهودو څخه چاته کافر نه وايي، او هغه چاته کافر نه وايي چې د مسلمانانو له دين څخه جدا وي، يا يې په تکفير کې چوپ پاتې کېږي يا يې په کفر کې شک کوي. او بل ځای کې وايي:

ولهذا نكفر من لم يكفر من دان بغير ملة الإسلام من الملل أو وقف فيهم أو شك أو صحح مذهبهم وإن أظهر مع ذلك الإسلام واعتقده واعتقد إبطال كل مذهب سواه فهو كافر بإظهاره ما أظهر من خلاف ذلك، [الشفا ٢ /٦١٠].

**ژباړه:** او له دې امله مونږ د هغه چا تکفير کوو څوک چې د اسلام پرته د بل ملت تابعداري کوونکی نه تکفيروي يا د هغوی له تکفير څخه چوپ پاتې کېږي يا **(د هغوی په کفر کې)** شک کوي يا ورله مذهب ته صحيح وايي. که څه هم په دې حال کې اسلام راښکاره کړي او اسلامي عقيده ولري او له اسلام پرته بل هر مذهب باطل وګڼي نو دا به کافر وي په سبب د ښکاره کولو د ده هغه څه چې د اسلام خلاف وي.

شيخ سليمان بن عبدالله بن محمد بن عبدالوهاب رحمهم الله د هغه چا په اړه چې کفر يې يقيني ثابت وي او څوک يې تکفير نه کوي؛ ويلي دي:

فإن كان شاكاً في كفرهم أو جاهلاً بكفرهم بينت له الأدلة من كتاب الله وسنة رسوله ﷺ على كفرهم، فإن شك بعد ذلك وتردد فإنه كافر بإجماع العلماء، على من شك في كفر الكافر فهو كافر، [انظر رسالة أوثق عرى الإيمان صـ ٦١].

ژباړه: که چېرې د دوی په کفر کې شکي وي يا يې له کفر څخه ناخبره وي؛ د دوی د کفر په اړه به ورته له کتاب او سنت څخه دلايل بيان شي، که چېرې يې له دې وروسته (د دوی په کفر کې) شک وکړ نو د علماوو په اجماع سره به کافر وي، د دې قاعدې په اساس چې څوک د کافر په کفر کې شک وکړي هغه به کافر وي.

سلفو په ډېرو ځایونو کې د هغه چا تکفیر کړی څوک چې د هغه چا تکفیر نه کوي چې کفر یې ښکاره او یقیني وي او له حال څخه یې خبر وي، شیخ الاسلام ابن تیمیه د **دروز** ډلې په اړه وایي:

كُفْرُ هَؤُلَاءِ مِمَّا لَا يَخْتَلِفُ فِيهِ الْمُسْلِمُونَ؛ بَلْ مَنْ شَكَّ فِي كُفْرِهِمْ فَهُوَ كَافِرٌ مِثْلُهُمْ [مجموع الفتاوى ٣ /١٦٢]. **ژباړه:** د دې خلکو په کفر کې مسلمانان اختلاف نه لري بلکې چا چې د دوی په کفر کې شک وکړ هغه به د هغوی پشان کافر وي.

د ابن عربي ډله علماوو تکفیر کړې ده او بیا یې ویلي دي: من شك في كفر طائفة ابن عربي فهو كافر . أهـ [ الدرر السنية ٩ /٤٢٣]، ژباړه: چا چې د ابن عربي ډلې په کفر کې شک وکړو هغه به کافر وي.

همداراز سلفو د ډېرو باطلو ډلو او خلکو تکفیر کړی دی او بیا یې ویلي دي چا چې د دوی تکفیر ونکړ یا یې ورله په کفر کې شک وکړو هغه به کافر وي،

**الغرض:** د قومي او وطني ډلو د تکفیر یو لامل همدا دی چې دوی د اتفاقي مرتد تکفیر نه کوي بلکې په وطني او قومي ورور سره یې نوموي.

**دریم ناقض:** قومپاله او وطنپاله ډلې خپلې قومي او وطني تړې او فیصلې د الله او د هغه د رسولﷺ د فیصلو نه پوره او ښائسته ګڼي چې دا لوی کفر دی، اللهﷻ فرمایي: الْيَوْمَ أَكْمَلْتُ لَكُمْ دِينَكُمْ وَأَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِي وَرَضِيتُ لَكُمُ الْإِسْلَامَ دِينًا [سُورَةُ المَائدة:٣] **ژباړه:** نن ما ستاسې دین، ستاسې لپاره بشپړ کړ او خپل نعمت مې پر تاسې پوره کړ او ستاسې لپاره مې اسلام ستاسې د دین په توګه منظور کړ.

نو د الله دین پوره هم دی چې د ژوند ټولې چارې په کې حل شوي دي او ښائسته هم دی .فیصلې او حکمونه یې د روغ فطرت او مزاج سره برابر دي او د ټولنې د اصلاح لپاره مناسب دي خو قومپاله او وطنپاله ډلې د الله دین نیمګړی ګڼي، فیصلې یې د دې زمانې سره مناسبې نه ګڼي نو ځکه خو پرې خپلې قومي او وطني

ترڅ او فيصلې لپاسه کوي او د الله شريعت شا ته کوي.

**څلورم ناقض:** ډېری قومپاله او وطنپاله ډلې د کفارو او مرتدينو سره د مسلمانانو په خلاف همکارې دي،او د هغوی سره په فزيکي او فکري توګه مرستندويه دي. چې دا هم کفر دی. الله ﷻ فرمايي:

لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُونَ الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِنْ دُونِ الْمُؤْمِنِينَ ۖ وَمَنْ يَفْعَلْ ذَٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللهِ فِي شَيْءٍ [سُورَةُ آل عِمرَان : ٢٨]. ژباړه: مؤمنان دې هېڅکله داسې نه کوي چې مؤمنان پرېږدي او له کافرانو سره ملګرتيا او دوستي وکړي. څوک چې داسې چلند وکړي، د هغه له الله سره هېڅ اړيکه نشته.

امام طبري رحمه الله د[فَلَيْسَ مِنَ اللهِ فِي شَيْءٍ] په تفسير کې وايي: يعني بذلك؛ فقد برئ من الله، وبرئ اللهُ منه، بارتداده عن دينه، ودخوله في الكفر.

**ژباړه:** په دې سره يې مقصد دا دی چې دغه انسان له الله څخه بېزاره شو او الله له ده څخه بېزاره شو له دې وجې چې د الله له دين څخه مرتد شو او په کفر کې داخل شو.

**پنځم ناقض:** قومپاله او وطنپاله ډلې د اعراض په کفر کې اخته دي .په دې توګه چې د اسلام اساسي احکام يې پرېښي دي لکه کفر، شرک، نفاق، د اسلام نواقض، موالات معادات او داسې نور، نه يې زده کوي او نه ورباندې عمل کوي. چې د دې ناقض دلائل مخکې د بل عنوان په ضمن کې ذکر شوي دي.

**شپږم ناقض:** قومپاله او وطنپاله ډلې د الله ﷻ د شريعت سره کينه لري او هېڅکله نه غواړي چې د الله ﷻ شريعت حاکم شي، چې دا هم لوی کفر دی الله ﷻ فرمايي: وَالَّذِينَ كَفَرُوا فَتَعْسًا لَّهُمْ وَأَضَلَّ أَعْمَٰلَهُمْ؛ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَرِهُوا مَآ أَنزَلَ اللَّهُ فَأَحْبَطَ أَعْمَٰلَهُمْ[سُورَةُ محَمَّد: ٩، ٨]

**ژباړه:** هغه کسان چې کافر شوي دي، د هغوی لپاره هلاکت دی او الله د هغو عملونه ضايع کړي دي؛ ځکه چې هغوی د الله نازل کړي احکام بد وګڼل نو عملونه يې ورله برباد کړل.

## د کفر نور وجوهات يې په دې ډول دي:

قومپاله او وطنپاله ډلې د طائفې ممتنعې په حکم کې داخلې دي په دې توګه چې سره له قوت او توان لرلو له خپل ځان او نورو خلکو څخه د شريعت مخه نيسي او عملي کولو ته يې نه پرېږدي، څوک چې ورباندې د شرعي احکامو د تطبيق اراده لري د هغوی سره جنګېږي. د داسې خلکو د کفر په اړه د صحابه وو اجماع موجود ده چې مانعينو د زکات ته يې مرتدين ويلي وو او په اړه يې د شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله قول مخکې ذکر شو .

د کفر بله وجه يې دا ده چې دوی کې د ايمان اساسي شرط نشته چې په طواغيتو کفر دی بلکې د ځمکې ډېری طواغيت يې منلي دي او په نرخونو او ترو يې راضي شوي دي الله جل جلاله فرمايي:فَمَن يَكْفُرْ بِالطَّٰغُوتِ وَيُؤْمِن- بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ لَا انفِصَامَ لَهَا ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ [سُورَةُ البَقَرَة: ٢٥٦] **ژباړه:** اوس چې څوک له کوم طاغوت څخه منکر شي او پر الله ايمان راوړي، هغه يوه داسې کلکه اسره ونيوله،چې هېڅکله ماتېدونکې نده، او الله د هر څه اورېدونکی او پر هر څه پوهېدونکی دی.

او د ايمان ځيني نور شرطونه هم په کې نشته لکه قبول (قبلول) چې ضد يې رد او نه منل راځي په دوی کې نشته ځکه د اسلام ډېری احکام يې ناخوښ ګڼلي، او انقياد(غاړه ايښودل)چې ضد يې ترک يعني پرېښودل راځي هم په کې نشته ځکه د اسلام ډېری احکام يې له عمل څخه وروسته کړي دي ، حال دا چې علماوو دغه شرطونه د ايمان د صحيحوالي لپاره يا هم ابتداءً او يا استمراراً شرط ګرځولي دي.

حافظ ابن حجرﷺ د دې حديث په شرح کې چې نبي عليه السلام فرمايي:
أُمِرْتُ أَنْ أُقَاتِلَ النَّاسَ حَتَّى يَشْهَدُوا أَنْ لَا إِلَهَ إِلَّا الله [مسند أحمد: ٨٣٤٠]، ويلي دي:
ومن الحديث نعرف أن العبد إذا قال لا إله إلا الله، يُعصَمُ ماله ودمه، وهل يصير بذلك مسلما؟ الراجح لا، حتى يُنظر في التزامه بأحكام الشريعة.ا.هـ. [كما في الفتح ١٢/ ٢٧٩]- **ژباړه:** له دې حديث څخه دا فايده معلومېږي چې يو بنده کله لا اله الا الله کلمه ووايي نو مال او وينه يې بچ کېږي، خو آيا په دې سره مسلمان ګرځي او که نه؟ راجح دا ده چې مسلمان نه ګرځي تر څو چې يې د شريعت د احکامو پابندۍ ته کتنه نه وي شوې.

او امام بغويﷺ ويلي دي: أن العبد إذا تلفظ بالشهادة يجبر على الإلتزام بأحكام الشريعة. **ژباړه:** کله چې يو بنده کلمه د شهادت ووايي نو د شريعت د احکامو د پابندۍ په اړه به ورباندې زور کېدلی شي.

ابن حجرﷺ د بغوي ﷺ د خبرې په شرحه کې وايي: ويفهم من قوله "يُجبر" أنه إذا لم يلتزم يصير مرتدا. ا.هـ. **ژباړه:** له دې خبرې څخه "چې زور به ورباندې کېدلی شي"؛ دا معلومېږي چې که چېرې د شريعت د احکامو پابندي ونکړي نو مرتد به وي.

او شيخ الاسلام ابن تيميهﷺ په خپلې فتاوی **[اووم جلد، صـ ٣٩٦]** کې ويلي دي:
الإقرار لابد أن يُتضمن التصديقُ والإلتزامُ. ا.هـ. **ژباړه:** د اقرار سره د کلمې تصديق او د احکامو پابندي لازمه ده.

نو د بحث نتيجه دا شوه چې قومپاله او وطنپاله ډلې که په هر ځای او هر ملک کې وي، که د جهاد په نوم راپورته شوې وي او که د انقلاب يا په نورو نومونو سره، که مسلحه مبارزه کوي او که سوله ييزه مبارزه کوي، دوی مسلمانان نه دي.

مبارزې ته يې د جهاد نوم کارول صحيح نه دي؛ بلکې دوی ګمراه شوې قومي او

وطني ملېشې دي، کلمې او د اسلام او جهاد نعرو ته يې ځکه اعتبار نشته چې په دوی کې د اسلام ډېرى نواقض موجود دي نو تر څو چې يې په الله صحيح ايمان نه وي راوړی او د قومپالنې او وطنپالنې له شرکي عقيدې څخه يې توبه نه وي ويستلې ،د دوی يو عمل هم د الله په نزد د قبيلدو وړ نه دی.

# جهاد او صوفيت!

بله ډله چې د جهاد په نوم مبارزه کوي يا يې هم کړې، د دې عصر د صوفيه ؤ ده، دا هغه خلک دي چې ځانونه اهل السنة والجماعة ته منسوبوي، خو بل لورې ته د دې عصر د شرکي او بدعي تصوف له افکارو څخه متاثره دي، د تصوف عقيدې ترويج او خپراوي ته کار کوي او همدغه ورته صحيح منهج او تګلاره ښکاري نو آيا داسې خلک د الله د لارې مجاهدين دي؟ د دوی مبارزه شرعي جهاد بلل کېدای شي، او د دوی دغه عقيده د ايمان او شرعي جهاد سره جمعه کېدلی شي او که نه؟ نو د دې پوښتنو په ځواب کې وايو:

# صوفيانو ته لنډه کتنه!

د تصوف نوم د نبيعليه‌السلام او صحابه ؤ، تابعينو په زمانه کې چا نه پېژاندو بلکې هغه وخت کې زهد، ورع او نور شرعي اصطلاحات مشهور وو خو د دويمې پېړۍ په اخر کې د تصوف اصطلاح راښکاره شوه چې په هغه وخت کې د زهد مرادف بلل کېده بيا وروسته د تصوف يا صوفية تر عنوان لاندې ډېر بدعات او شرکيات رامنځته شول، خاص سلسلې د تصوف لپاره ايجاد شوې، خپل ځانګړي اصطلاحات او عقائد ايجاد شول چې له امله يې تصوف د اسلام له دائرې څخه ووتو،او سُنّي تصوف په بدعي او شرکي تصوف بدل شو، يعنې په يوناني، يهودي او روماني تصوف بدل شو، ډېرې داسې عقائد په کې ښکاره شول چې د اسلام سراسر خلاف وو، لکه د وحدة الوجود، اتحاد، حلول او وحدة الشهود عقائد،د اولياء او پيرانو د عصمت عقيده، له پيغمبرانو څخه د اولياؤ د غوره والي عقيده، د داسې ولايت اعتقاد لرل چې بيا ترې د شريعت احکام ساقط شي، د نبيعليه‌السلام په اړه ډېره غلو

کول چې د اولوهيت مرتبې ته يې رسول،د اولياؤ په اړه غلو کول: د غوث، اوتاد، اقطاب، ابدال او نجباو لقبونه ورکول، د قبرونو د تعظيم عقيده لرل او داسې نور پليت عقائد ورته داخل شول او د خپلو گمراه شوو مشرانو چې: ابن عربي، حلاج، سهروردي، ابن الفارض، ابن السبعين او نور دي، تابعداري يې وکړه، د علم د حصول طريقې يې هم کشف، ذوق، الهام، فراست او خوبونه وگرځول، په اسلام کې يې پيرپرستي راووېستله، پير سره د بيعت ځانگړي شرائط يې مقرر کړل، ځيني بدعي او شرکي اوراد يې په خلکو کې رائج کړل، قوالي، رقص او هو هو يې هم د ذکر په توگه خلکو ته وروپېژندل، د صوفيت ډېرې سلسلې يې ايجاد کړې لکه نقشبنديه، قادريه، سهرورديه، چشتيه، تيجانيه، شاذليه او داسې نور، چې په يوې طريقه کې يې داخلېدل لازم کړل.

نو ډېرى خلک ورباندې گمراه شول او له صحيح منهج څخه بې لارې شول.

نو له دې امله دا اړينه وه چې د صوفيه ؤ د ځينو سلسلو عقائد رانقل کړو دې لپاره چې مسلمانان يې له حقيقت څخه خبر شي او ځان ورڅخه وساتي.

که څه هم د صوفيه ؤ طريقې ډېرې زياتې دي او په ډېرى عقائدو کې متحد دي خو مونږ به د څلورو مشهورو طريقو عقائد په لنډه توگه رانقل کړو چې نقشبنديه، قادريه، سهرورديه او چشتيه دي.

## ❖ اوله طريقه - نقشبنديه:

نقشبنديه طريقه چې محمد بهاء الدين شاه نقشبند ته منسوب ده چې په بخارا کې په کال **٧١٧ هـ** کې زېږېدلی او **٧٩١ هـ** کې وفات شوی دی، له ده څخه مخکې د دې طريقې نسبت ابو محمد الغجدواني ته کېدو، د دې طريقې نور نومونه هم شته لکه مجدديه يا فاروقيه او خالديه. د دې طريقې ځيني عقائد په دې ډول دي:

## ۱. اوله عقيده:

د ځان لپاره پیر نیول واجب ګڼي په "البهجة السنية في آداب الطريقة الخالدية النقشبندية‌صـــ۴۷ کې"صوفي محمد بن عبد الله الخاني، او په "نور الهداية والعرفان في سر الرابطة والتوجه وختم الخواجكان " **کې صوفي محمد أسعد صاحب زادة صـــ۴۱" کې ليکلي دي:** من لا شيخ له فشيخه الشيطان، ومتى كان شيخه الشيطان كان في الكفر حتى يتخذ شيخا متخلِّقا بأخلاق الرحمن .

**ژباړه:** څوک چی پیر نه لري نو د هغه پیر شیطان دی او تر څو چې د ده پیر شیطان وي نو دا کس په کفر کې وي تر دې چې داسې پیر ونیسي چې هغه د رحمان ذات په اخلاقو موصوف وي.

او محمد بن سليمان بغدادي په "الحديقة الندية في الطريقة النقشبندية صـــ۳۱ " کې ليکلي: څوک چې پیر نه لري نو دا کس د الله او د رسولﷺ مخالف دی تر هغه به ورته هدایت ونه کړی شي تر څو چې شیخ ونه نیسي که څه هم دا په علم کې د **۱۰۰۰ زر** کتابونو حافظ هم وي. او محمد خاني په" البهجة السنية صـــ۳ " کی د پیر د فائدو په اړه لیکلي دي: والشيخ كالميزاب ينزل الفيضُ من بحره المحيط إلى قلب المريد .

**ژباړه:** پیر د یوې ناوې په څیر دی چې د احاطه کوونکي دریاب نه یې د مرید زړه ته برکتونه راوړيږي.

## ۲. دويمه عقيده:

په حیواناتو کې هم د نقشبندي طریقې پیران شته، مشهور نقشبندي صوفي محمد بن عبدالله الخاني په " البهجة السنية في آداب الطريقة العلية الخالدية النقشبندية صـــ٦ " کې لیکي: وأما الحيوانات فلنا منهم شيوخ: ومن شيُوُخِنا الذين اعتمدت عليهم: الفرسُ، فإن عبادته عجيبة، والبازي والهرة والكلب والفهد والنَّحلة وغيرُهم:

فما قدرت أن أتصف بعبادتهم على حد ما هم عليها فيها . **ژباړه:** او هر چې حيوانات دي نو په هغوی کې هم زمونږ پېران شته او له هغوی څخه چې ما په کومو پېرانو اعتماد کړی دی نو اس دی چې عبادت يې ډېر ناشنا دی، باز، پيشو، سپی، پړانګ، مچۍ او نور، دي نو زه وس نه لرم چې د دوی عبادت په هغه طريقه بيان کړم چې هغوی يې کوي.

## ۳. دريمه عقيده:

دوی وايي چې زمونږ په پېرانو د بې خودۍ او نشې حال راځي چې په دغه حال کې که دوی هر څه وايې نو معذور وي که څه هم کفر هم وکړي. په دې اړه د نقشبندي سلسلې مشهور امام صوفي سرهندي په "مكتوبات الإمام الرباني‌صـــ۳۳ او په صـــ۱۱۴ کی ليکي: وما وقع في عبارات مدح الكفر والترغيب في شد الزنار فمصروف عن الظاهر المتبادر فإنهم معذورون بغلبة السكر في ارتكاب هذه المحظورات . **ژباړه:** په کومو عبارتونو کې چې د کفر صفت او د زنار تړلو ترغيب راغلی نو هلته ظاهري معنا مراد نه ده ځکه دوی (پېران) د نشې د غلبې له وجې د دغو ګناهونو په کولو کې معذور دي.

معصوم نقشبندي چې د نقشبنديانو قطب الأولياء يادېږی په **"السبع الأسرار فی مدارج الأخيار صـــ۵۰ "** کې د صوفي محي الدين ابن عربي او هغه ته ورته صوفيانو، د هغه اقوالو نه چې صريح کفر او زندقت په کې دی همدا عذر پيش کړی هغه ليکي: وأنهم معذورون لغلبة حالهم، **ژباړه:** دوی معذور دي ځکه چې دغه حال وربانديې غلبه کړې وي يعني نشه وي.

## ٤. څلورمه عقیده:

د جنت بې پرواهي او د جهنم نه د نه وېرېدلو عقېده لرل څکه چې د دوی په نزد د جنت طلب کول او د جهنم نه پناه غوښتل او په دغه نیت عبادت کول عبث کار دی. صوفي محمد امين کردي، الله ته په فریاد کې ناشنا الفاظ لیکي وایي: أحبك **ژباړه:** زه تا سره مینه لرم خو په دې سره زه د جنت امید نه ساتم او نه د اور نه لا أرجو بذلك جنة ... ولا أتقي نارا وأنت مراد إذا كنت لي مولى فأية جنة ... وأية نار تتقى وتراد پرې ځان بچ کوم خو ته مې مراد یې، کله چې ته زما سردار یې نو بیا د کوم جنت د تلو او د کوم اور نه د بچ کېدو اراده وکړی شي.

د ابو یزید بسطامي نه په **"المواهب السرمدیه صـــ ۴۵ "** کې نقل دي:

أريدك لا أريدك للثواب - ولكني أريدك للعقاب **ژباړه:** زما مراد ته یې ستا اجر او ثواب مې مراد نه دی خو زه ستا د عذاب لپاره اراده لرم.

ابو یزید نه علامه ابن الجوزيرَحِمَهُ اللهُ په" تلبیس ابلیس صـــ۳۰۲ "کې نقل کړي دي چې ده به ویل: إن لله عبادا لو بصقوا على جهنم لأطفئوها، **ژباړه:** د الله داسې بنده ګان هم شته چې که چېرې په جهنم لاړې توف کړي نو د هغې اور به مړ کړي.

او بیا وایې چې دې صوفې داسې هم ویلي دي:

«ولقد وددت أن قامت القيامة حتى أنصب خيمتي على جهنم، فسأله رجل: ولم ذاك يا أبا يزيد؟ فقال: إني أعلم أن جهنم إذا رأتني تخمُد فأكون رحمة للخلقِ .

**ژباړه:** زه دا خوښوم چې کله د قیامت ورځ شي چې زه خپله خیمه د جهنم په خوا کې ودروم، نو یو سړي ترې پوښتنه وکړه چې اې ابو یزیده! دا د څه لپاره؟

نو هغه ورته وویل: زه په دې پوهېږم که جهنم ما ووینې نو اور به یې مړ شي، نو زه به د مخلوق لپاره یو رحمت شم. او بیا یې دا دعا وغوښتله: اللهم إن كان في سابق علمك أن تعذب أحدا من خلقك بالنار فعظم خلقي حتى لا تسع معي غيري.

**ژباړه:** ای الله! که چیرته ستا په علم کې ستا په مخلوق کې څوک داسې وي چې ته ورته د جهنم عذاب ورکوې نو زما بدن غټ کړه دې لپاره چې ماسره په جهنم کې بل څوک ځای نشي.

## ۵. پنځمه عقيده:

د اللهﷻ د ذات په اړه ځيني عقايد لري چې بيان يې په دې ډول دی:

- **اول:** د حلول عقيده لري، دا دېته وايي چې انسان داسې کمال ته ورسېږي چې په الله کې ورک شي.
- **دويم:** دوی مخلوق د الله سيوری ګڼي، چې د الله سره يې داسې ربط دی لکه د سيوري چې د ذات سره ربط وي.
- **دريم:** د وحدة الوجود عقيده لري، چې خالق او مخلوق يو شی دی يو د بل نه جدا نه دي.

صاحب د رشحات وايي: **ژباړه:** ځينو مشرانو د «لا إله إلا الله» د مفهوم په اړه ويلي: كله كله سالک د : « قال بعض الأكابر في معنى لا اله إلا الله: أحيانا يقول في مرتبة سلوكه: لا معبود إلا الله وأحيانا لا مقصود إلا الله وأحيانا لا موجود إلا الله» .(رشحات عين الحياة ۱۴۱) - خپل چلند په سطحه وايي: «له الله پرته بل معبود نشته» او كله هم وايي **«له الله پرته بل مقصود نشته».** او ځينې وختونه وايي "له الله پرته بل هيڅ شتون نلري .

د صوفيه وو په عبارتونو کې چې کوم ځای کې هم د توحيد لفظ ووينئ نو له دې څخه يې مصطلح توحيد مراد نه دی چې په مقابل د شرک کې راځي، بلکې له دې څخه يې د وحدة الوجود عقيده مراد ده له دې وجې خو توحيد دوه ډولونو ته وېشي: يو ته توحيد وجودي وايي، دا دېته وايي چې په کائنات کې له الله پرته بل هيڅ شی وجود نه لري او د الله نه سوا چې هر څه وي هغه په نشت حساب دي

چې دا معنا ورله سرهندي کړې ده او په مثال کې ورله د حسين بن منصور الحلاج وينا راوړې چې وايي: أنا الحق، زه حق يعني الله يم، او د ابو يزيد قول يې راوړی چې وايي: سبحاني ما أعظم شأني، پاکي ده مالره زما شان څومره لوی دی. **(يعني په دې وخت کې دوی په توحيد وجودي کې غرق وي نو ځکه داسې الفاظ وايي)** (انظر: مکتوبات الامام الرباني المسمى بالمکتوبات الربانية ص ٥٦).

او دويم ډول يې توحيد شهودي دی، د دې معنا ده: چې په کائناتو کې له الله پرته بل هېڅ نه ويني.

## ٦. شپږمه عقيده:

قبر پرستي، په دې توګه چې د قبرونو دومره تعمير، تعظيم او احترام کوي چې په محمدي شريعت کې يې هېڅ اصل نه موندل کېږي.

صوفي محمد امين کردي په **"المواهب السرمدية صــ١٤٢** " کې ليکلي دي:

ولما مات الشيخ بهاء الدينِ نقشبندُ بنى أتباعه على قبره قبة عظيمة وجعلوه مسجدا فسيحا. **ژباړه:** کله چې شيخ بهاء الدين نقشبند مړ شو نو د هغه پلويانو د هغه په قبر يوه لويه ګنبده جوړه کړه او هغه يې يو پراخه جومات وګرځاوه.

شعراني صوفي په **"الأنوار القدسية ١٤٢** " کې د دې قبر په اړه ليکي وايي:

ولم يزل يستغاث بجنابه ويكتحل بتراب أعتابه ويلتجأ إلى أبوابه: **ژباړه:** او همېشه يې د قبر په خوا کې مدد غوښتل کېږي او د دورشل خاوره يې سترګو پورې مږل کېږي او د قبر دروازو ته يې پناه راوړل کېږي.

## ۷. اوومه عقيده:

د مړو روحونه حاضرول او د هغوی سره د ملاقاتونو او بيعتونو عقيده لرل.

په **"المواهب السرمدية صـ١١٣"** کې ليکي: ولهذا كان الشيخ بهاء الدين نقشبند يجتمع بأرواح سلسلة المشايخ النقشبندية ويأخذ العهد والولاية والتكليف منهم في المقبرة .

**ژباړه:** او له دې وجې شيخ بهاء الدين نقشبند به د نقشبندي سلسلې د (مړه شويو) شيخانو روحونه راجمعه کول او له هغوی څخه به يې په هديره کې د ولايت او د تکليف بيعت اخيستو يعني فقر، ولږه او نورو سختيو باندې به يې ترې بيعت اخستو.

## ۸. اتمه عقيده:

د قبرونو زيارت کول او مدد ترې غوښتل او همدا راز د پيغمبرانو نه د ښېښې او د حاجتونو د پوره کېدو سوال کول او هم د پيرانو د روحونو نه سوال کول.

په دې اړه محمد امين الكردي وايي: وكل شأن من شؤون العبادة وطلب العلوم والكشوفات مرتبط بالقبور، بل تلقي العلوم وفيضها والبيعة والتكليف واستمداد كل خير مرتبط بالقبر. **(الأنوار القدسية ٧). ژباړه:** د عبادت اړوند ټول کارونه او د علمونو طلب او کشفونه په قبرونو پورې اړه لري بلکې د علمونو او خيرونو حاصلول او د بيعت، مکلف کېدلو او د هر ډول خيرونو لاس ته راوړل په قبر پورې مربوط دي.

او ځيني پيرانو يې داسې ويلي دي: إن الله يوكل بقبر الولي ملكا يقضي الحوائج وتارة يخرج الولي من قبره ويقضيها بنفسه» (تنوير القلوب في معاملة علام الغيوب ٤١٠)

**ژباړه:** الله ﷻ د بزرګ په قبر يو ملائک مقرروي چې حاجتونه پوره کوي او کله ناکله بزرګ د قبر نه راوځي، پخپله د خلکو حاجتونه پوره کوي.

## ۹. نهمه عقيده:

د پير، ولي او بزرگ د قبر د زيارت لپاره يې خپل ځانګړي اداب وضع کړي دي چې په " السعادة الأبدية فيما جاء به النقشبندية صـ۲۷ "او په" البهجة السنية في آداب الطريقة النقشبندية صـ۴۳ او صـ۴۴ " کې ذکر دي. وايي: چې مريد کله د نيکانو د قبر د زيارت اراده وکړي او د هغوی له پاکو روحونو څخه د مرستې او فيض اراده وکړي نو اول چې کله قبر خوا ته ورشي سلام دې واچوي بيا دې د هغه د پښو سره نژدې ښي اړخ ته ودرېږي، ښی لاس دې په چپ لاس کېږدي او سر دې ښکته زوړند ونيسي بيا دې يو ځل سورت فاتحه او يوولس ځله سورة الاخلاص او يو ځل اية الکرسي ولولي او بيا دې د قبر والا روحانيت تصور کړي په داسې فکر چې دا يو نور **(رڼا)** دی چې د نورو هر ډول فکرونو نه خالي وي او بيا دې دغه رڼا ته په خپل زړه کې ځای ورکړي تر دې چې ده ته د هغه له فيوضاتو څخه فيض حاصل شي.

## ۱۰. لسمه عقيده:

کعبه د پيرانو ملاقات او زيارت ته ځي.

ابن عابدين نقشبندي په **"حاشيه ابن عابدين ۳۰۲/۱ المطبعة الأميرية"** کې ليکي: الکعبة إذا خرجت من أرضها لزيارة أصحاب الکرامة ففي تلك الحال جازت الصلاة إلى أرضها. ژباړه: کعبه چې کله د خپلې ځمکې نه د کرامت والاو ملاقات ته لاړه شي نو په دغه وخت کې يې ځمکې ته مونځ جائز دی.

غزالي په **"احياء علوم الدين ۲۶۹/۱"** کې ليکي: ومنهم من تأتي الکعبة إليه وتطوف هي به وتزوره. ژباړه: او ځينې له دوی (پيرانو) څخه هغه څوک دي چې کعبه يې خوا ته ورځي او کعبه ترې طواف کوي او د هغه زيارت کوي.

مشهور نقشبندي پیر محمد امین کردي **په "المواهب السرمدية صـــ٣١٣ "** کې لیکي: یسجدون إلیها والسجود لله: فكذلك الشیخ: **ژباړه:** خلک کعبې ته سجده کوي خو دغه سجده الله ته حسابیږي نو همداسې پیر ته هم ده (یعنې پیر ته هم سجده په حقیقت کې الله ته سجده حسابیږي) .

## ۱۱. یوولسمه عقیده:

فقیر یعنې پیر او بزرگ الله ته محتاج نه ګڼي ـ والعیاذ بالله ـ په " الحدائق الوردية في حقائق أجلاء الطريقة النقشبنديةصـــ١٣١ " کې لیکي: د بهاء الدین نقشبند نه د صوفیانو د دې خبرې د مقصد په اړه پوښتنه وشوه چې وایي: الفقير هو الذي لا يحتاج إلى الله. فقال: المراد منه كما قال إبراهيم:حسبي من سؤالي علمه بحالي.

**ژباړه:** فقیر هغه کس دی چې الله ته یې هېڅ حاجت نه وي نو هغه وویل: ددې مقصد هغه دی څنګه چې ابراهیمعليه‌السلام ویلي وو: زما په حال چې الله ته کوم علم دی دا زما لپاره له هغه څخه د سوال کولو نه کافي دی.

## ۱۲. دولسمه عقیده:

نقشبندیان خپل پیران او شیخان په مخلوق کې تصرف کوونکي ګڼي د دې سلسلې امام پیر صوفي سرهندي په خپل کتاب **"مکتوبات الامام الرباني صـ ٣٤٩"** کې لیکي: الشيخ يحيي ويميت، وأن الإحياء والإماتة من لوازم مقام المشيخة:

**ژباړه:** پیر ژوندي کول او مړه کول کولی شي، ژوندي کول او مړه کول د پیرتوب له مرتبې سره لازمه خبره ده.

همداراز د پیر خواجه نقشبند په اړه په **"المواهب السرمديةصــــ١٣٣"**او په **"الأنوار القدسيةصـــ١٣٧ "** او په **"جامع كرامات الأولياء١٤٦/١ "** کې یې یوه کیسه راوړې وایي:

كان يقول للرجل "مت" فيموت ثم يقول له "قم حيا" فيحيا مرة أخرى .

**ژباړه:** هغه به یو سړي ته وویل **" مړ شه "** نو سړی به مړ شو بیا به یې ورته وویل: ژوندی شه، نو بېرته به ژوندی شو.

صوفي عبدالله دهلوي په **"شفاء العليل ص۱۰۴ "** کې لیکي وایي:

وللنقشبندية تصرفات عجيبة من التصرف في قلوب الناس والإشراف على خواطر الناس وما يختلج في الصدور. **ژباړه:** د نقشبندي صوفیانو لپاره ناشنا تصرفات دي چې د خلکو په زړونو کې تصرف کول او د خلکو د زړه په خاطرو (زړه کې تېره شوې خبره) باندې خبرېدل او په هغه خبرو یې پوهېدل چې سینو ته راځي.

همداراز صوفي احمد ضياء الدين کمشخاتلي نقشبندي په **"جامع أصول الأولياء وأنواعهم صـ۱۳۱ "** کې د تصوف اولیاء او له هغوی څخه د قطبانو او تصرف کوونکو ډلونه ذکر کوي او بیا د یو ډول تصرف کوونکو اولیاؤ په اړه وایي:

لا موت ولا عارض ولا صعق ولا تغير لهم: ژباړه: (یعنی دا ذکر شوي تصرف کوونکي قطبان) دوی ته نه مرگ راځي، نه کوم عارض، نه بې هوشي او نه پرې کوم بدلون راځي.

## ۱۳. دیارلسمه عقیده:

نقشبندیان دا عقیده لري چې د نبيعليه‌السلام ذات له نور (رڼا) څخه پیدا شوی دی او بل دا چې سیوری یې هم نه لرلو.

د نقشبندي سلسلې مشهور پیر احمد سرهندي په **"مكتوبات الامام الرباني صـ۱۹۳ "** کې د دې عقیدې لپاره استدلال د ابن عربي په دې خبره کړی چې هغه ویلي دي:

إن الجمع المحمدي أجمع وأشمل من الجمع الإلهي. ژباړه: یقیناً محمدي عنصر د الهي عنصر په پرتله ډېر پوره او شامل دی. او په **" نور الهداية والعرفان صـ۲٦ "** **کې** لیکي:

وما زال الحق تعالى يخلق الموجودات من الحقيقة المحمدية علوية وسُفْلِيَّة لطيفة وكثيفة بسيطة ومركبة. **ژباړه:** الله ﷻ همېشه لپاره مخلوق له محمدي حقيقت څخه پيدا کوي هغه پاسنی مخلوق دی که لاندېنی، نازک دی او که کلک، مفرد دی او که مرکب.

## ۱٤. **څوارلسمه عقيده:**

نقشبنديان خپل پیر د نبي ﷺ او د صحابه ؤ نه زيات د احترام وړ ګڼي تر دې چې د هغه مېشت ځای او طرف يې د کعبې په څېر د تعظيم وړ ګڼي. په **"السبع الأسرار صـ١٠٥ "** کې معصوم صوفي د پیر د حقوقو او ادبونو په اړه مريد ته ليکلي دي: أن لا يشرب ماء ولا يأكل طعاما ولا يكلم أحدا في حضور شيخه:

**ژباړه:** مريد به د پير په مخکې اوبه هم نه څکي، نه به خوراک کوي او نه به د چا سره خبرې کوي.

بيا وايي: ولا يمد رجله عند غيبة شيخه إلى جانب هو فيه ولا يرمي بصاقه إلى ذلك الجانب: **ژباړه:** او د پير د نشوالي په وخت به هغه طرف ته پښې نه غځوي، کوم طرف کې چې پير دی او نه به هم هغه لور ته لاړې توف کوي.

په **"مكتوبات الامام الرباني صـــ٣٤٧ "** کې دي چې د پير مخکې به اودس هم نه کوې، د هغه په حضور کې به نفل مونځ هم نه کوې، بلکې که مريد د الله ذکر هم کوي، نو د پير نه به اجازه غواړي په **"الحدائق الوردية صــــ١٤٠ "** کې ليکي: چې د شيخ بهاء الدين يو مريد ويلي دي چې ماته خپل پير شيخ شادي چې د بهاء الدين له خاص مريدانو څخه وو، امر وکړو چې له مونږ څخه دې يو کس هغه طرف ته پښه هم نه غځوي کوم طرف چې زمونږ پير وي نو دا وايي: زه يوه ورځ د پير قصر ته د زيارت لپاره تلم، نو په لاره کې د يوې ونې سيوري لاندې مې تکيه ولګوله چې دغه وخت کې يو حيوان راغی او دوه ځله يې په پښه وچيچلم نو زه راپورته شوم

زيات درد يې هم کولو بيا په دويم ځل څملاستم نو په دريم ځل هم دغه حيوان راغی او زما پښه يې وچيچله بيا راپورته شوم او کېناستم او په دې اړه مې فکر کاوه چې د دې به څه سبب وي نو ماته د پير شيخ شادي نصيحت راياد شو نو راته معلومه شوه چې ما د پير صيب د قصر په طرف پښه غځولې ده، نو پوهه شوم چې دا ماته د دې کوتاهی ادب راکړل شو.

## ۱۵. پنځلسمه عقيده:

نقشبنديان ختم خواجه ګان کوي چې په ډېرو بدعي او شرکي الفاظو مشتمل دی چې په کې د هرې سلسلې والا د خپلو پيرانو نه غوښتنې کوي لکه نقشبندي سلسلې والا وايي: ياشهنشاه نقشبند شيئاً لله امدادکن فی سبيل الله، او قادريان وايې: ياشيخ جيلانی شيئاً لله امدادکن فی سبيل الله، او داسې نور.

## ۱۶. شپاړسمه عقيده:

نقشبنديان دا عقيده لري چې اللهﷻ د هر شي په شکل راښکاره کېږي که څه هم حيوان هم وي العياذ بالله. په رشحات کې وايي: وهكذا فالسالكون يرون الحق سبحانه بالتجليات الصورية، حتى انه يتجلى في جميع صور الاشياء من معادن ونباتات وحيوانات وإنسان... (رشحات عين الحياة ۱۳۳-۱۳٤).

**ژباړه:** او همدا راز د صوفيت لارويان اللهﷻ ويني په انځوريزو رڼاګانو سره، تر دې چې اللهﷻ د هر شي په بڼه (انځور) راښکاره کېږي: لکه معدنيات، بوټي، حيوانات، او انسان .

همدارازپه **"المواهب السرمدية في مناقب النقشبندية د محمد أمين الكردي صـ۱۱۸ "او په** " الأنوار القدسية في مناقب النقشبندية صـ۱۳۰ " **د عبد المجيد خاني کې او په" الحدائق الوردية في حقائق أجلاء الطريقة النقشبندية صـ۱۳۰** " کې او **په**

**"البهجة السنية في آداب الطريقة النقشبندية صـ٧٣ "** کې د خواجه بهاء الدين نقشبند په اړه ليکلي دي، چې هغه ته خپل پير د تصوف په ابتدايي مرحله کې امر وکړو چې د سپو خدمت وکړي، نو هغه وايي: ما اوه کاله د سپو خدمت وکړو تر دې چې کله به سپی زما مخې ته په لاره کې تېرېدو نو زه به ورته ودرېدم تر دې چې سپی به تېر شو نو د دې ادب له وجې ماته خپل پير امر وکړو چې زه د دې علاقې د سپو خدمت په اخلاص او صدق سره وکړم او له هغوی څخه مرسته طلب کړم، وايي: پير مې راته ويلي وو چې ته به په دوی کې يو سپي ته ورشې چې د هغې په خدمت به تاته لويه نېک بختي درپه برخه شي . نو وايي: ما د دغه سپو خدمت يو لوی غنيمت وګڼو او د هغه د مشورې موافق مې د دوی په خدمت کې هېڅ کوتاهي ونکړه تر دې چې زه يوه ورځ يو سپي ته ورسېدم چې د هغه په ملاقات سره په ما يو ناشنا حال راغی زه د هغه مخې ته ودرېدم او بې اختياره مې سخت وژړل نو دغه سپی دغه وخت په شاه سملاستو او څلور واړه پښې يې اسمان ته پورته کړې نو ما د هغه د غم نه ډک اواز، اسويلی او زبېرګی واورېدو نو ما هم لاسونه پورته کړل او امين امين ويل مې شروع کړل تر دې چې چپ شو او روان شو.

## ۱۷. اوولسمه عقيده:

د الله په اړه دا عقيده لرل چې هغه مونځ کوي، د نقشبنديانو په نزد د ولايت يوه مرتبه ده چې هغې ته د مونځ د حقيقت مرتبه وايي، چې دا يوه لوړه مرتبه ده دوی په خپلو کتابونو کې ليکلي دي:

ولعل فيما ورد في قصة المعراج « قف يا محمد فإن الله يصلي» إيماء إلى حقيقة هذه المرتبة» ثم انتهى إلى أن الله « في الحقيقة هو العابد والمعبود».

**ژباړه:** او شايد چې د معراج په کيسه کې داسې هم راغلي: ودريږه اى محمد! اللهﷻ لمونځ کوي، په دې سره يې د دې مرتبې حقيقت ته اشاره کړې، بيا وروسته وايي: يقينا اللهﷻ په حقيقت کې هم عابد (عبادت کوونکى) او هم معبود (هغه چې عبادت ورته کېدى شي) دى. **(كتاب السبع الأسرار في مدارج الأخيار ص ٨٣لمحمد معصوم العمري النقشبندي).**

## ١٨. اتلسمه عقيده:

ځيني يې دا عقيده لري چې د اخرت ورځ نشته سرهندي وايي: « ورأيت جماعة من المريدين يستشهد بشعر مولانا عبد الرحمن الجامي قدس الله سره: ما مبدأ ولا معاد صاح إلا وحدة ما نحن في ذا البين إلا كثرة موهومة. (المكتوبات الربانية للسرهندي ٣٤٥): **ژباړه:** ما د مريدانو يوه ډله وليده چې د مولانا عبدالرحمن جامي په شعر يې استدلال کاوه الله دې پاک کړي (دعا يې ورته کړې): له يو والي پرته نه کوم اصل شته او نه دويم ځلي ژوند مونږ بل څه نه يو مګر خيالي ډله يو. يعني دا څه چې ښکاري دا هسې خيالات دي په حقيقت کې ټول يو وجود دى چې هغه الله دى.

بل ځاى کې شيخ جامي نقشبندي خپلو مريدانو ته داسې ويلي دي: « كان الله ولم نكن نحن. ويكون الله ولا نكون. والآن نحن معدومون أيضا والله موجود (رشحات عين الحياة ١٤٠) - ژباړه: اللهﷻ و او مونږ نه وو او الله به وي مونږ به نه يو او اوس هم مونږ نشت يو الله موجود دى، يعني په حقيقت کې چې دا څه ښکاري ټول الله دى مونږ هيڅ نه يو.

## ۱۹. نولسمه عقيده:

د ځينو يې دا عقېده ده چې اولياء د مخلوق پيدا کولو توان لري. د رشحات مصنف وايي « قال حضرة شيخنا: قد أعطي بعض العارفين قدرة على كل ما أرادوا خلقه». (رشحات عين الحياة ۱۳۳): **ژباړه:** زمونږ پير صيب ويلي دي: ځينو عارفانو (صوفيانو) ته د هر شي د پيدا کولو طاقت ورکړی شوی وي.

## ۲۰. شلمه عقيده:

اولياء او پيران غيبدان او د سينو له خبرو باخبره ګڼل. عبد الله دهلوي ويلي دي: « وللنقشبندية تصرفات عجيبة من التصرف في قلوب الناس والاشراف على خواطر الناس وما يختلج في الصدور». (شفاء العليل ترجمة القول الجميل ۱۰۴). کماتقدم:

**ژباړه:** د نقشبندی صوفيانو لپاره ناشنا تصرفات دي چې د خلکو په زړونو کې تصرف کول او د خلکو د زړه په خاطرو (زړه کې تېره شوې خبره) باندې خبرېدل او په هغه خبرو يې پوهېدل چې سينو ته راځي: کوثري د ابو الحسن الشاذلي په حواله ليکي چې هغه ويلي دي:

« أطلعني الله على اللوح المحفوط فلولا التأدب مع جدي رسول الله لقلت: هذا سعيد وشقي». (ارغام المريد شرح النظم العتيد لتوسل المريد برجال الطريقة النقشبندية للكوثري ص ۳):

**ژباړه:** زه الله ﷻ لوح محفوظ ته ورښکاره کړم که چيرته زما د نيکه نبي عليه السلام د ادب لحاظ نه وی نو ما به ويلې وی: دا نېک بخته دی او دا بدبخته دی.

## ۲۱. يويشتمه عقيده:

د پير سره رابطه د ذکر نه غوره ګڼي صاحب د نور الهدايه وايي:

« رؤية الشيخ تثمر ما يثمره الذكر، بل هي أشد تأثيرا من الذكر، وقد كانت تربية النبي لأصحابه كذلك فكانوا يشتغلون برؤية طلعته السعيدة وينتفعون بها أكثر مما ينتفعون بالاذكار». (نور الهداية والعرفان في سر الرابطة والتوجه وختم الخواجكان ۵۱)

**ژباړه:** د شيخ ليدل هم د ذکر په شان نتيجه ورکوي، په حقيقت کې دا د ذکر څخه ډېر مؤثر دی، او د رسول الله ﷺ د صحابه کرامو پالنه همداسې وه، هغوی به د نبي ﷺ په ليدلو مشغول وو او له هغې څخه به يې د ذکر په پرتله ډېره ګټه پورته کوله.

## ۲۲. دوه ويشتمه عقيده:

د فناء في الله عقيده لري، دا دې ته وايي چې کله د تصوف د خلوتونو، مراقبو، رقصونو، سماع ګانو، تصوفي اورادو او داسې نورو، اعمالو په نتيجه کې فقير کمال ته ورسيږي نو بيا د الله په ذات کې د ده ذات ورک شی والعياذ بالله، بهاء الدين نقشبند ويلي دي:« كنت في بستان فغلبت علي الجذبات الالهية فحصل لي غيبة اتصلت بالفناء الحقيقي وحقيقة الفناء في الله ﷻ ورأيت أني في صورة نجم في بحر من بحور بلا نهاية ثم بعد ست ساعات رُدَتْ اليّ بشريتي شيئا فشيئا» .(الحدائق الوردية في حقائق أجلاء النقشبندية ص۱۴۰): **ژباړه:** زه په يو باغ کې وم نو الهي جذبات راباندې دومره غالب شو چې زه په کې ورک شوم، ريښتنې فنا او په الله ﷻ کې د فنا کېدو حقيقت ته په کې ورسېدم، او ما وليدل چې زه د ستوري په شکل کې په يو داسې سمندر کې وم چې هېڅ انتهاء يې نه لرله، بيا وروسته له شپږو ساعتونو، زما انسانيت ماته بيرته لږ لږ راوګرځول شو.

په" **المواهب السرمديةصـ۱۲۴** "او په "**الأنوار القدسية صـــ۱۳۲** " کی دي چې د شاه

خواجه نقشبند نه پوښتنه وشوه چې د دې خبرې څه معنا ده چې ځينو صوفيانو ويلي دي: إذا تم الفقر فهو الله، کله چې فقر کامل شي نو دا سړی بيا الله جوړ شي؟ نو وايي: هغه ورته وويل: هذا إشارة إلى الفناء، دا فناء في الله ته اشاره ده . يعني د دې مقصد دا دی چې دغه وخت انسان د الله په ذات کې ورک شوی وي.

بيا خواجه نقشبند دا اشعار ولوستل:

**من كان لم تكــن * لم يك إلا الله**

**وإذا فنيت من بقي* لم يبق إلا الله**

**ژباړه:** هغه څوک چې نه وو، نو نه وو هغه مگر الله وو، او چې کله فنا شو په(حقيقت کې) او پاتې په (ظاهر کې دی) نو پاتې نه دی مگر الله.

د "تنوير القلوب" مصنف صوفي محمد امين کردي نقشبندي د ياد کتاب په "**صـ٥١٠**" کې دا شعرونه راوړي دي وايي: وبعد الفناء في الله كن كيفما تشاء ... فعلمك لا جهل وفعلك لا وزر. ژباړه: او وروسته د فنا کېدو نه په الله کی، شه څنګه چې دې خوښه وي ستا علم به جهل نه وي او ستا کار به گناه نه وي. يعني کله چې د فنا في الله مرتبې ته ورسېږي نو بيا چې څه غواړي کولی يې شي او علم به يې جهل نه وي او کار به يې گناه نه وي.

## ۲۳. درويشتمه عقيده:

د خفي ذکر قائل دي، دا دې ته وايي چې د ژبې په ځای په زړه باندې ذکر وکړي، دا ځکه چې دوی وايي  نوی شروع کوونکی بايد ښکاره ذکر وکړي خو چې کله اوچتو مرتبو ته ورسېږي نو بيا ورته خفي يعني پټ ذکر پکار دی چې په زړه سره يې کوي.

دا د نقشبنديه طريقې عقائد وو چې مونږ په لنډه توگه ذکر کړل نور يې هم ډېر عقائد دي خو د کتاب د اوږدوالي له امله يې پرېږدو.

### ❖ دويمه طريقه - قادريه:

د تصوف دويمه طريقه قادريه ده چې ډېرى څانگې لري لكه يافعيه، نابلسيه، روميه، عروسيه، بريلويه او داسې نورې، دغه طريقه شېخ عبد القادر جيلاني ته منسوب ده چې په كال ۴۷۱هـ كې پيدا شوى او په كال۵۶۱ هـ كې وفات شوى دى، دا يو نېک سړى تېر شوى، سلفو علماوو يې ښه توصيف كړى، خو د قادري سلسلې والا يې په خپل گومان د خپلې سلسلې بنسټگر گڼي حال دا چې هغه له دوى او د دوى له شركي كړنو او عقائدو بېزاره دى هغه د اهل السنة والجماعه عقيده لرله خو د دوى عقيدې ته ډېرى شركيات او بدعات راداخل شوي دي چې ځيني يې دلته بيانوو:

## د قادري صوفيانو عقائد:

### ۱. اوله عقيده:

قادري صوفيان شيخ عبدالقادر رحمه الله ته رامدد شه وايي او له هغه څخه د مشكلاتو د حل غوښتنه كوي.

صوفي حاجي اسماعيل محمد سعيد قادري په **"الفيوضات الربانية فى المآثر والأوراد القادرية صـ۱۹۴ "** كې شېخ عبد القادر جيلاني ته خپل فرياد په دې الفاظو سره كوي وايي: يا سلطان العارفين، يا باز الأشهب، يا فارج الكرب، ياغوث الأعظم، يا واسع اللطف والكرم، يا كنز الحقائق، يا معدن الدقائق، يا صاحب الملك والملوك، يا هاوي النسيم، يا محيي الرميم، يا مبدي جمال الله يا راحم الناس، يا مذهب البأس، يا مفتاح الكنوز، يا كعبة الواصلين، يا قوي الأركان، يا مجلي الكلام القديم، يا نارَ الله الموقدة ، يا حياة الأفئدة يا مقصود السالكين،يا قاضي القضاة، يافاتح المغلقات، يا كافي المهمات، يا ضياء السماوات والأرضين، يا غافر الأوزار، يا إمام الأئمة، يا كاشف الغمة، يا من ظهر سره في الدنيا والآخرة، يا شاهد الأكوان بنظره،

يا مبصر العرش بعلمه، يا قطب الملائكة والإنس والجن، ياقطب العرش والكرسي واللوح والقلم...اهـ

ژباړه: ای د پوهانو سرداره، ای خړ بازه، ای د مصيبتونو لرې کوونکيه، ای لوی فرياد رسانه، ای پراخه مهربانۍ والا، ای د حقيقتونو خزانې، ای د دقيق (علمونو) سرچينې، ای د پاچاهيو خاونده، ای نرمې هوا را الوځوونکيه، ای د ذره ذره شويو هډوکو ژوندی کوونکيه، ای د الله جمال راښکاره کوونکيه، ای په خلکو رحم کوونکيه، ای د تکليف ختموونکيه، ای د خزانو کيلي، ای د رسېدونکو کعبې، ای د بنيادونو قوي کوونکيه، ای د پخوانۍ خبرې ښکاره کوونکيه (د قديم ذات خبرې ښکاره کوونکی)، ای د الله بل کړی شوی اوره، ای د زړونو ژونده، ای د عابدانو (صوفيانو)هدفه،ای د قاضيانو قاضي،ای د بندو کارونو خلاصوونکيه، ای د مصيبتونو کافي کېدونکيه، ای د اسمانونو او ځمکو رڼا، ای د ګناهونو ښوونکيه، ای د امامانو سرداره، ای د غمونو لرې کوونکيه، ای هغه ذاته چې راز دې په دنيا او اخرت کې راښکاره شوی دی، ای کائناتو ته په خپل نظر سره کتونکيه، ای هغه ذات چې په خپل علم سره عرش وينې، ای د ملايکو، انسانانو او پېريانو قطب يعنې مرکزه، ای د عرش، کرسۍ، لوح محفوظ او قلم قطب او مرکزه .

په دې دعا کې چې کوم شرکيات دي دا له هېچا پټ نه دي.

## ٢.دويمه عقيده:

دوی د وحدة الوجود، حلول او اتحاد عقيده لري.

په " الفيوضات الربانية صـــ١٦ "کې اسماعيل محمد سعيد قادري ليکي:

واحفظني اللهم بك في مراتب وجودك بشهودك حتى لا أشهد غير أفعالك وصفاتك بوجهك الحق لا إله إلا الله امح عني نقطة الغيرية لأشاهدك ولا أدري غيرك، يا هو يا هو يا هو، لا سواك موجود، لا سواك مقصود، يا وجود الوجود . ژباړه: ای الله

ما په خپل مدد سره په مرتبو د وجود او شهود ستا کې وساته تر دې چې زه ستا د کارونو او صفاتو نه سیوا نور څه ونه ګورم ستا په حق مخ سره زه سوال کوم نشته حقدار د عبادت مګر یو الله دی زما نه د غیریت (یعني چې د بل چا نه غوښتنه وکړم) نقطه اوباسه دې لپاره چې تاته ګورم او له تا نه سیوا بل څوک ونه پېژنم یا هو یا هو یا هو (!) ستا نه سوا بل څوک موجود نه دی ستا نه سوا بل څوک مقصود نه دی ای د موجوده شیانو وجوده. - همداراز د ذکر شوي کتاب په صـــ۴۱ کې لیکي: الحمد لله الذي وجد في كل شيء. **ژباړه:** ټولې ستائنې الله لره دي هغه ذات چې په هر شي کې موجود دی. او په "الغوثية صـــ۵ " کې لیکي چې شیخ عبدالقادر وویل: ثم قال لي (أي الله): يا غوث الأعظم ما ظهرتُ في شيء كظهوري في الإنسان. ژباړه: بیا ماته الله وویل: ای لوی فریاد رسانه! زه په هیڅ شي کې دومره نه یم ښکاره شوی لکه څومره چې په انسان کې ښکاره شوی یم.

## ۳. دریمه او څلورمه عقیده:

د قادري صوفیانو په نزد ولي (بزرګ)ته وحې کېږي او بل دا چې ولي په کائناتو کې مطلق تصرف کوونکی ګڼي.

صوفي اسماعیل قادري په **"فیوضات القادریه صـ۷ "** کې لیکي: اللهﷻ شیخ عبد القادر جیلاني ته وحې وکړه دا وایي، چې جیلاني ویلي دي:

ثم قال لي ياغوث الأعظم: الفقير له أمر في كل شيء إذا قال لشيء كن فيكون.

**ژباړه:** بیا راته الله وویل چې ای غوث اعظمه (لوی فریاد رسانه) فقیر (صوفي) ته په هر څه کې اختیار دی کله چې یو شي ته ووایي: شه، نو هغه به کېږي.

د **"الفیوضاتصـــ ۳۳ او صـــ۳٦ "** کې یې په شیخ عبد القادر پسې لیکلي چې هغه په **"الوسيلة"** کې دا شعرونه ویلي دي:

وأمری أمر الله إن قلت كن يكن
وكل بـــــأمر الله فـــــأحكم بقدرتي
وأعلم نبات الأرض كم هو نابت
وأعلم رمل الأرض كم هو رملة
وأعلم علم الله أحصي حروفه
وأعلم موج البحر كم هو موجة

**ژباړه:** زما امر د الله امر دی که زه اوايم چې شه نو کېږي او دا ټول د الله په امر کېږي، خو زه په خپل قدرت سره حکم کوم او زه د ځمکې په ټولو بوټو علم لرم چې څومره به راخېژي او زه ځمکې په شګو پوهېږم چې څومره دي او زه د الله په علم پوهېږم ماته يې توري زده دي او زه د درياب په چپو پوهېږم چې څو چپې دي.

## ٤.پنځمه عقيده:

د قادريانو په نزد د نيکو عملونو د ثواب او د بدو عملونو د سزا اندازه مؤقته ده هميشه نه ده. صوفي اسماعيل په" **الفيوضات صـ٧** " کې ليکي: ثم قال لي: لا ألفة ولا نعمة في الجنان بعد ظهوري فيها ولا وحشة ولا حُرقة في النار بعد خطابي لأهلها. **ژباړه:** (جېلاني وايي چې کله ماته وحې وشوه) نو الله راته وويل: د جنت سره مينه او د جنت نعمتونه به د هغه وخت نه وروسته نه وي چې کله زه (يعنې جيلاني) په کې راڅرګند شم او هيڅ وېره به نه وي او نه به اور سېزل کوي وروسته له دې چې زه د جهنميانو سره خبرې وکړم .

### ٥. شپږمه عقیده:

قادریان دا امېد او عقیده لري چې جېلاني به خپل پلویان او مریدان په دنیا او اخرت دواړو کې له شرونو څخه ساتي او هر ډول دفاع به يې کوي. په **"الفیوضات الربانیةص۔۔۔۴۷ "** کې يې په خپل ګومان عبد القادر جېلاني ته په نسبت کولو سره ویلي دي چې هغه وویل:

مریدي لك البشرى تكون على الوفاء
إذا كنت في هم أغثك بهمتي
مریدي تمسك بي وكن بي واثقا
لأحميك في الدنيا ويوم القيامة
أنا لمريدي حافظ مما يخافه
وأنجيه من شر الأمور وبلوة
وكن يا مريدي حافظا لعهد وما
أكن حاضر الميزان يوم الوقيعة

**ژباړه:** ای زما مریده! تا ته زیری دی چې تر څو ته وفاداره پاتې يې (**د تصوف په اعمالو**)، نو کله چې درباندې غم راشي زه به ستا په پوره عزم سره مرسته وکړم، ای زما مریده! په ما باندې منګولې ولګوه او اعتماد راباندې وکړه، زه به دې په دنیا او د قیامت په ورځ ساتنه وکړم، زه د خپل مرید ساتونکی یم د هغه څه نه چې دی ترې وېره لري او زه به ورته د شرونو او مصیبتونو نه نجات ورکوم او شه ای زما مریده حفاظت کوونکی د وعدو خپلو ، زه به د قیامت په ورځ میزان تلې ته حاضر یم (هلته به ستا مدد وکړم) .

### ٦. اومه عقيده:

قادريان د شېخ عبد القادر جېلاني قبر ته د کعبې په څېر د تعظيم په سترګه ګوري.

په **"الفيوضات القادرية صـ٣٣ " کې** ليکلي دي چې په **"الوسيلة"** کی شېخ جېلاني ذکر کړي:

ضريحي بيت الله من جاء زاره

يهرول له يحظى بعز ورفعة

**ژباړه:** زما قبر د بيت الله (حکم لري) څوک چې زيارت ته راوځغلي نو عزت او سرلوړي به يې په برخه شي.

### ٧. اتمه عقيده:

قادري صوفيان د غم او پرېشانۍ په وخت کې د عبد القادر جېلاني نه مدد غواړي.

په **"الفيوضات القادرية صـــــ٣٢ "** کې يې ليکلي دي کله چې ستا په زړه کې يو غم او پريشاني راشي نو يوولس ١١ قدمه به د عراق په طرف روان شې او په اول قدم سره به ووايې: چی يا شيخ محيي الدين او دويم سره به ووايې: يا سيدي محيي الدين او دريم سره به ووايې: يا مولانا محيي الدين او څلورم سره به ووايې: يا مخدوم محيي الدين او پنځم سره به ووايې: يا درويش محيی الدين او شپږم سره به ووايې: يا خواجة محيي الدين او په اوم سره به ووايې: يا سلطان محيي الدين او اتم سره به ووايې : يا شاه محيي الدين او په نهم سره به ووايې: يا غوث محيي الدين او په لسم سره به ووايې: يا قطب محيي الدين او په يوولسم سره به ووايې: يا سيد السادات عبد القادر محيي الدين و يا شيخ الثقلين أغثني يعنی ای دسردرانو سردار عبدالقادر محيي الدين او ای د انسانانو او پېريانو پېره زما مدد وکړه.

## ۸. نهمه عقيده:

د غوثيې والا ليکي چې انسان له نور څخه پيدا شوی دی: لکه په **"الغوثيه صـــ۵ "** کې دي چې عبدالقادر جيلانی ويلي دي:

ثم سألت يا رب من أي شيء خلقت الملائكة؟ قال لي يا غوث الأعظم خلقت الملائكة من نور الإنسان وخلقت الإنسان من نوري.

**ژباړه:** بيا مې د الله نه پوښتنه وکړه چې ای ربه ملائک دې له څه شي پيدا کړي دي؟ نو الله راته وويل: ای غوث اعظمه (لوی فرياد رسانه) ما ملائک د انسان له رڼا څخه پيدا کړي دي او انسان مې له خپلې رڼا څخه پيدا کړی دی. نو دلته که د انسان نه نبي عليه السلام مراد وي او که عام انسانان مراد وي خو دا عقيده د شريعت د ډېرو نصوصو خلاف ده او هيڅ اصل نه لري.

## ۹. لسمه عقيده:

دوی دا عقيده لري چې شيخ عبد القادر جيلاني د نبي ﷺ سره د معراج په شپه ملګری و او د ابراهيم عليه السلام او نوح عليه السلام سره يي هم ملاقات شوی دی په "الفيوضات الربانية ۴۷صـــ" کې ليکي: قال الشيخ"أنا كنت في العليا بنور محمد وفى قاب قوسين عند اجتماع الأحبة، أنا كنت مع نوح أشاهد في الورى بحارا وطوفانا على كف قدري. وكنت مع إبراهيم ملقى بناره وما برد النِّيران إلا بدعوتي.

**ژباړه:** شيخ وايي: زه په بره مقام( اسمانونو )کې د محمدﷺ په رڼا کې وم او د قاب قوسين په وخت د محبوبانو په مجلس کې وم زه د نوح عليه السلام سره وم چې په کائنات کې مې دريابونه او طوفانونه د لاس د ورغوي په څېر ليدل او زه د ابراهيم عليه السلام سره وم کله چې اور ته غورځول کېدو او اور يخ نه شو مګر زما په دعا سره يخ شو.

همداراز بريلويه چې د قادري طريقې يوه څانګه ده او په افغانستان، پاکستان، هند او نورو ملکونو کې خپل پلويان لري هم ډېر فاسد او منحرف عقائد لري چې

ځيني يې دلته په لنډه توګه راوړو:

١. بريلوي طريقې والا د وحودة الوجود او وحدة الشهود قائل دي.

٢. د نبي عليه السلام په هکله دا عقيده لري چې له نور (رڼا) څخه پيدا شوی او بشر (انسان) نه دی.

٣. نبي عليه السلام او بزرګانو نه مدد غواړي.

٤. د نبي عليه السلام په اړه دا عقيده لري چې په غيبو پوهېږي او د الله نائب مطلق يې ګڼي.

٥. د اولياء (بزرګانو) په اړه دا عقيده لري چې د نبي عليه السلام نه هم غوره دي يا يې د الله سره په مرتبه کې برابر ګڼي، د غوث، اقطاب، ابدال او نجباؤ لقبونه ورکوي، او الله ته يې وسيله کوي.

٦. د قبرونو د تعظيم عقيده لري.

٧. عيد ميلاد النبي لمانځل.

٨. د اسقاط حيله کول. او داسې نور ډېرې شرکي او بدعي عقائد لري چې علماوو تفصيلا رد کړي دي. د ځينو عقائدو رد يې له العزائم اداري څخه په خپور شوي کتاب "السيف القدسي في رد أباطيل المقدسي صـ ١٣" کې کتلی شئ چې د طالبانو د عقيدې په ضمن کې د دوی په ځېنو عقائدو رد شوی دی.

## ❖ دریمه طریقه. سهروردیه:

د دې سلسلې نسبت سهروردي ته شوی چې پوره نوم يې ابو الفتوح يحيى بن حبش بن أميرک السهروردي دی، د ده په لقب کې د مقتول کلمه هم ورزياته شوې دا دې لپاره چې له هغو دوه نورو صوفيانو نه جدا شي چې د هغوی لقب هم سهروردي دی. دا په کال ۵۴۹هـ، کې پيدا شوی او په کال ۵۸۶ هـ، کې وفات شوی دی.

حافظ بن حجر رحمه الله په **"لسان الميزان ۱۵۶/۳ "** کې د ده ترجمه کې ليکي:

الشهاب" السهروردي الفيلسوف صاحب السيمياء قتل لسوء معتقده وكان أحد الأذكياء قتل شابا في سنة ست وثمانين وخمس مائة بحلب ولم يرو شيئا .

**ژباړه:** شهاب سهروردي فلسفي صاحب د سيمياء (يو ډول علم)، د بدې عقيدې له امله وژل شوی دی او دا يو له زيرکه خلکو څخه و د ځوانۍ په عمر کې په کال **۵۸۶** کې په حلب کې وژل شوی دی او هيڅ روايت يې نه دی نقل کړی.

دغه ډول شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله د يو چا په نظريه رد کوي او د بطلان لپاره ورته په مثال کې د ياد سهروردي کلام پيش کوي وايي: مثل كلام السهروردي المقتول على الزندقة صاحب " التلويحات "و" الألواح "و" حكمة الإشراق ". وكان في فلسفته مستمدا من الروم الصابئين والفرس المجوس ( مجموع الفتاوى ۱۹/۹ ) - **ژباړه:** د سهروردي د خبرې په څېر کوم چې زنديق وژل شوی چې د **"تلويحات، الألواح"** او د **"حكمة الاشراق "** مصنف دی چې د روم د صابيانو او د فارس د مجوسو نه يې فلسفه راخيستې.

علامه ذهبي رحمه الله د ده په ترجمه کې په "سير أعلام النبلاء **۳۷۴/۱۵ او ۳۷۵** " کې وايي: السهروردي العلامة، الفيلسوف السيماوي المنطقي، شهاب الدين يحيى بن حبش بن أميرك السهروردي، من كان يتوقد ذكاء، إلا أنه قليل الدين. **ژباړه:** سهروردي علامه، فلسفي، سيماوي، منطقي شهاب الدين يحيى د حبش ځوی چې

هغه د اميرک ځوی دی، دا هغه څوک و چې ذکاوت يې ځلېده خو د کم دين خاوند وو، بيا ذهبي رحمه الله وايي: وله كتاب "التلويحات اللوحية والعرشية"، وكتاب "اللمحة"، وكتاب "هياكل النور"، وكتاب "المعارج والمطارحات"، وكتاب "حكمة الإشراق"، وسائرها ليست من علوم الإسلام.

**ژباړه:** د ده يو كتاب **"التلويحات اللوحية والعرشيه" وو او" اللمحة" كتاب، او "هياكل النور"** كتاب، او **"المعارج والمطارحات" او "حكمة الاشراق"** كتابونه وو خو دا ټول د اسلام له علومو څخه نه وو.

بيا علامه ذهبی رحمه الله د ابن خلكان رحمه الله په حوالې سره ليکي چې د حلب علماوو د ده په قتل فتوه ورکړه نو امام ذهبي رحمه الله د دې د وژلو په تائيد او توافق کې ويلي دي:

**قلت: أحسنوا وأصابوا. ژباړه:** زه وايم دوی ښه کار کړی او په خپله فتوه کې حق ته رسيدلي دي.

همداراز علامه ابن خلكان په "وفيات الأعيان ج٦ صـــ ٢٧٣ "کې د همدې سهروردي په ترجمه کې ليکي: السهروردي قيل عنه: إنه معاند  للشرائع. - ژباړه: د سهروردي په اړه ويل شوي چې د شريعت د احکامو سره عناد کوونکی وو.

بيا د نومو‌ړي د وژلو سبب داسې بيانوي، وايي: وأكثر الناس على أنه كان ملحدا لا يعتقد شيئا، نسأل الله تعالى العفو والمعافاة الدائمة في الدين والدنيا والآخرة، وأن يتوفانا على مذهب أهل الحق والرشاد.- ژباړه: او ډېر خلک په دې نظر دي چې سهروردي يو ملحد (بې دينه) انسان و د شريعت په يو حکم يې عقيده نه لرله مونږ له الله جل جلاله څخه په دين، دنيا او اخرت کې د همېشه عافيت غوښتنه کوو او دا چې مونږ ته د حقپرستو او هدايت والاو په مذهب کې مرګ راولي.

دا د دې سلسلې د مشر حال دی نو چې د يوې سلسلې مشر د سلفو علماؤ په اصطلاح ملحد، زنديق، قليل الدين، د شريعت د احکامو سره ضد کوونکی وي نو د

هغې عقيده دې له همدغه ځای څخه معلومه شي، تفصيل ته يې اړتيا نشته، خو بيا هم په اجمالي توګه داسې ويلی شو چې قبر پرستي، د مړو د روحونو نه فيوضات حاصلول، قبرونو مخی ته مراقبې کول، په غير شرعي توګه له ځانه اذکار او اوراد جوړول، پيرانو په حق کې غلو کول، د بې ځايه کرامتونو دعوې کول، سماع، رقص، خلوتونه او د مړو دنيا ته راتلل، او داسې نور بې شماره عقائد لري چې د دې سلسلې والاو کتابونه ترې ډک دي.

## ❖ څلورمه طريقه. چشتيه:

چشتيه طريقه چې أبو إسحاق دمشقي چشتي ته منسوب ده په شپږمه پېړۍ کې ايجاد شوې او په هند کې د خواجه معين الدين حسن السنجري الأجميري په توسط خپره شوې دا هم د تصوف د نورو طريقو په څېر ډېری بدعي او شرکي عقائد لري چې لنډيز يې په دې توګه دی: د وحدة الوجود عقيده، صوفي بيعت کول، د شېخانو او بزرګانو په اړه غلو (د حد نه تجاوز) کول، بدعي مراقبه کول، حرامه سماع، د فناء في الله عقيده، ځان د تصوف سختيو او کړاؤونو ته ورکول، د ځينو مراحلو او مقاماتو په طی کولو سره د پير او مرشد نه د شرعي تکاليفو د اسقاط عقيده لرل، له ځانه جوړ شوي ذکرونه کول، خلوتونه کول او داسې نور ډېری بدعي او شرکي عقائد لري، چې د دوی په کتابونو کې ذکر دي.

# د صوفيه ؤله دغو منحرفو عقائدو څخه ځينې ديوبندي اکابر هم متاثره دي:

دا يو واضح حقيقت دی چې انکار ورڅخه نشي کېدای د دوی اقوال پرې دليل دي د بيلګې په توګه ځينې دلته راوړو:

**د ديوبندي اکابرو له اقوالو څخه د وحدة الوجود او فناء في الله عقيدې بيلګې:**

امداد اللہ مهاجر مکي چې د ديوبنديانو مشر دی وايي: اول جس شخص نے اس مسئلہ میں خوض فرمایا شیخ محی الدین ابن عربی ھے انکا اجتهاد اس مسئلہ میں اور اثبات مسئلہ کا براہین واضحہ سے جمیع موحدان کی گردن پر روز قیامت موجب احسان ہے۔(شمائم امدادیہ صـــ ٣٢) - **ژباړه:** اولنی هغه کس چې په دې مسئله کې ژور ورننوتلی، شيخ محي الدين ابن عربي دی د هغه اجتهاد په دی مسئله کې او د مسئلې د اثبات په اړه واضح دلائل به د ټولو مؤحدينو په غاړه د قيامت په ورځ د احسان لامل وي.

بل ځای کې وايي : تا وقتیکہ ظاہر و مظہر میں فرق پیش نظر سالک ہے بوئے شرک باقی ہے ( شمائم امدادیہ صـــ٣۴) **ژباړه:** تر کوم وخته چې د عابد او معبود يعني الله او مخلوق کې د فرق کولو ګمان وي نو د شرک بوي به پاتې وي.

او بيا د ياد کتاب په **صفحه ٣٥** کې وايي: اور جس وقت نظر سالک تقیدات وہستی ماسوا سے اٹھ گئی سوائے خدا کے اور کچھ نظر نہیں آتا بے خبر ہو جاتا ہے بلکہ اس معنی کا شعور بھی جاتا رہتا ہے سب خدا ہی خدا نظر آتا ہے ھو ھو کہنے کیا ذکر آنا آنا کہنے لگتا ہے اس کو مرتبہ فنا در فنا کھتے ہیں۔

**ژباړه:** کوم وخت کې چې د سالک(صوفي) نظر د قيوداتو او د الله د ذات نه سيوا له نورو شيانو څخه پورته شي، نو د اللهﷻ څخه سيوا ورته نور څه په نظر نه راځي،

بې خبره شي او شعور یې هم ختم شي او د هو هو ذکر څه کوي، بیا آنا انا وایي او دیته مرتبه فنا در فنا ویلی کېږي.

همدغه حاجی امداد الله لیکي: اس مرتبہ میں خدا کا خلیفہ ہو کر لوگوں کو اس تک پہنچاتا ہے اور ظاہر میں بندہ اور باطن میں خدا ہوتا ہے، اس مقام کو برزخ البرازخ کہتے ہیں۔ (کلیات امدادیہ ۳۶،۳۵) - **ژباړه:** په دې مرتبه کې بنده د الله خلیفه شي او خلکو لره دې حد ته ورسوي، چې ظاهر کې بنده او باطن کې الله شي، یعنې ظاهر کې انسان دی او باطن کې الله دی.

بل ځای کې حاجی امداد الله وایي: اور اس کے بعد اس کو ھو ھو کے ذکر میں اسقدر منهمک ہو جانا چاہیے کہ خود مذکور یعنی ( اللہ ) ہو جائے اور فنا در فنا کے یہی معنی ہیں۔(کلیات امدادیة صـ۱۸) **ژباړه:** او ذکر کوونکي ته له دې وروسته په هو هو ذکر کې دومره ورډوبېدل پکار دي چې دا پخپله مذکور یعنې الله وګرځي او د فنا في الفنا همدا معنا ده .

همدا راز د قاسم نانوتوي، مولوي یعقوب، مولوي احمد حسن او نورو په اړه امداد الله مهاجر مکي لیکي: مسئلہ وحدت الوجود حق و صحیح ہے اس مسئلہ میں کوئی شک وشبہ نہیں ہے۔ فقیر ومشائخ فقیر اور جن لوگوں نے فقیر سے بیعت کی ہے سب کا اعتقاد یہی ہے۔ مولوی محمد قاسم صاحب (نانوتوي)، مولوی محمد یعقوب صاحب اور مولوی احمد حسن صاحب وغیرہ ہم فقیر کے عزیز ہیں اور فقیر سے تعلق رکھتے ہیں۔ کبھی خلاف اعتقادات فقیر و خلاف مشرب مشائخ طریق خود مسلک اختیار نہ کریں گے۔(بیان وحدة الوجود صـ۱۲۹ شمائم امدادیة صـ۳۲) ژباړه: د وحدت الوجود مسئله سمه او حق ده ځکه په دې مسئله کې هېڅ شک او شبهه نشته ،فقیر، د فقیر مشائخ او چا چې فقیر سره بیعت کړی دی، د ټولو همدا عقیده ده، مولوي محمد قاسم صاحب، مولوي محمد یعقوب صاحب او

مولوي احمد حسن صاحب زما ملګري او د دې فقير (خپل ځان يادوي) سره نېکې اړيکي لري، کله به هم د فقير د عقېدې خلاف او د فقير د مشائخو د تګلارې خلاف مسلک اختيار نه کړي.

شيخ رشيد احمد ګنګوهي خپل پير امداد الله مهاجر مکي ته د خط په اخر کې ليکي: يا اللہ معاف فرمانا کہ حضرت کے ارشاد سے تحرير ہوا ہے، جھوٹا ہوں کچھ نہيں ہوں، تيرا ہی ظل ہے تيرا ہی وجود ہے ميں کيا ہوں کچھ نہيں ہوں اور وہ جو ميں ہوں وہ تو ہے اور ميں اور تو خود شرک در شرک ہے۔ استغفر الله استغفر الله استغفر الله (فضائل صدقات از زکريا کاندھلوی حصہ دوم ٥٥٦).

**ژباړه:** يا الله ما معاف کړه، دا خط د حضرت په حکم سره ليکل شوی دی، دروغژن يم هېڅ هم نه يم يوازې ستا سيوری دی، يوازې ستا وجود دی۔ زه څه يم، هېڅ نه يم او هغه چه زه يم هغه ته يې ۔ او زه او ته پخپله د شرک له پاسه شرک يو۔ يعني دا ويل چې انسان هم موجود دی، او الله هم موجود دی۔ دا د شرک لپاسه شرک دی۔

د مشهور حلولي حسين بن منصور الحلاج المصلوب په اړه زکريا تبليغي ديوبندي داسې وايي: دی گئی منصور کو پھانسی ادب کے ترک پر تھا انا الحق حق مگر اک لفظ گستاخانہ تھا. (ولی کامل از مفتی عزيز الرحمن ص٢٤٩) - **ژباړه:** منصور د ادب د پرېښودلو له امله په دار وځړول شو. هغه دا أنا الحق (زه الله يم، چې له امله يې کافر شوی و ) کليمه يې حقه وه خو يو لفظ د ادب منافي و.

د ديوبند بل يو مشهور او منل شوی عالم پير ضامن علي جلال ابادي ليکي:

ايک بار ارشاد فرمايا کہ ضامن علی جلال آبادی کی سہارنپور ميں بہت رنڈياں مريد تھيں ايک بار سہارنپور ميں کسی رنڈی کے مکان پر ٹھہرے ہوے تھے سب مريد نياں اپنے مياں صاحب کی زيارت کيلئے حاضر ہوئيں مگر ايک رنڈی نہيں

آئی، میاں صاحب بولے کہ فلانی کیوں نہیں آئی؟ رنڈیوں نے جواب دیا میاں صاحب ہم نے اس سے بھیتر ا کھا کہ چل میاں صاحب کی زیارت کو اس نے کہا میں بہت گنھگار ہوں اور بہت روسیاہ ہوں میاں صاحب کو کیا منہ دکھاؤں ، میں زیارت کے قابل نہیں میاں صاحب نے کہا :نہیں جی تم اسے ہمارے پاس ضرور لانا چنانچہ رنڈیاں اسے لیکر آئیں جب وہ سامنے آئی تو میاں صاحب نے پوچھا: بی بی تم کیوں نہیں آئی تھیں ؟ اس نے کہا حضرت روسیاہی کی وجہ سے زیارت کو آتی ہوئی شرماتی ہوں، میاں صاحب نے بولے: بی بی تم شرماتی کیوں ہو؟ کرنے والا کون اور کرانے والا کون؟ وہ تو وہی ہے رنڈی یہ سن کر آگ بگولہ ہوگئی اور خفا ہو کر لاحول ولاقوۃ الا با اللہ کہا اگر چہ میں روسیاہ و گناہگار ہوں مگر ایسے پیر کے منہ پر پیشاب بھی نہیں کرتی میاں تو شرمندہ ہو کر سرنگوں رہ گئے اور وہ اٹھ کر چلدی۔(تذکرۃ الرشید ۲/۲۴۲)

**ژباړه:** یوه ورځ یې (رشید أحمد)وفرمایل چې د ضامن علي جلال آبادي په سهارنپور کې ډېرې رنډۍ (زناکارې ښځې) مریدانې وې، یوه ورځ په سهارنپور کې د یوې رنډۍ په کور کې ضامن علي جلال آبادي میلمه شو. ټولی مریدانې خپل پیر صاحب د زیارت لپاره حاضرې شوې، مگر یوه رنډۍ حاضره نشوه، میا صاحب پوښتنه وکړه چې فلانۍ ولې نه ده راغلې، نو باقي رنډیو ځواب ورکړ، چې میا صاحب! مونږ هغې ته ډېر وویل چه لاړه شه د پیر صاحب زیارت لپاره خو هغې وویل: چې زه ډېره گناهگاره یمه، او مختوره یم پیر صاحب ته خپل مخ څنگه وښایم ،زه د زیارت لیاقت نه لرم نو پیر صاحب وویل چې نه! تاسې یې ضرور راولئ ، کله چه رنډیو دا راوستله او پیر صاحب ته مخامخ شوه نو پیر صاحب وویل چه بي بي ته ولې نه راتلې ؟ نو رنډۍ وویل چې مختوره یم، زیارت ته راتگ شرم گڼم، نو پیر صاحب وویل: بي بي! ته ولې شرمیږې؟ کوونکی د زنا څوک دی او ستا نه د زنا صادرونکی

ځوک دی؟ هغه خو همغه (الله) دی۔ رنډی چې دا الفاظ واورېدل نو خفه شوه او لاحول ولاقوة الا بالله کلمه يې ولوستله ، او ويې ويل که څه هم زه ګناهکاره هم يم خو د داسې پېر په مخ بولې هم نه کوم، پېر وشرمېدو او سر يې ښکته کړو او رنډی لاړه.

أشرف علي تهانوي ليکي:ایک موحد سے لوگوں نے کہا کہ اگر حلو اور غلیظ ایک ہیں تو دونوں کو کھاؤ انھوں نے بشکل خنزیر ہو کر گوہ کو کھا لیا پھر بصورت آدمی ہو کر حلوہ کھا لیا اس کو حفظ مراتب کہتے (امداد المشتاق ص۔ ۱۰۱ اشرف علی تهانوي). **ژباړه:** يو مؤحد (صوفي) ته وويلی شو چې که حلوا او د انسان ډکې بولې يو شی وي، نو دواړه وخوره نو هغه اول کې خنزير شو ډکې بولې وخوړلې بيا د انسان په شکل شو نو حلوا يې و خوړه.

اشرف علي د دغه اعتراض کوونکي په رد کې وايي: اقول اس معترض کي غباوة کے سبب اس تکلف و تصرف کي ضرورة پڑی ورنہ جواب ظاہر ہے کہ یہ اتحاد مرتبہ حقیقت میں ہے نہ کہ احکام و آثار میں ۔ (امدادالمشتاق ۱۰۱)

**ژباړه:** زه وايم:دا اعتراض کوونکی غبي و، په دی وجه دا مؤحد دې تکلف او تصرف ته محتاج شو، ګنې ځواب ظاهر و چې حلوا او پليتي په حقيقت کې متحد دي، نه په احکامو او آثارو کې.

انور شاه کشميري ديوبندي په فيض الباري کې د يو حديث په شرحه کې ليکي:

وفي الحديث لمعة إلى وحدة الوجود و كان مشائخنا مولعون بتلك المسئلة إلى زمن شاه عبد العزيز أما أنا فلست بمتشدد فيها. (فيض الباری ٤/٤٢٨)

**ژباړه:** په دې حديث کې د وحدة الوجود عقيدې يو ځرک پروت دی زمونږ ټول شېخان د شاه عبد العزيز زمانې پورې دې مسئلې ته لېوال وو خو زه په کې زياته سختي نه کوم. أولياء په غيبو پوهېږي، کشف ورته کېږي او فوق الأسباب امورو

کې تصرف کولی شي.

مولوی نصیر الدین غورغشتي دیوبندي لیکي:

ان للأولیاء مدداً ظاهراً بالغاً لزوارهم بحسب أدبهم. (حاشیة المشکاة: ۱/ ۱۶۹) –

**ژباړه:** اولیاء د خپلو زائرینو سره د هغوی د ادب په اندازه په ښکاره توګه پوره مرسته کولی شي.

اشرف علي تهانوي په اوراح ثلاثه کې یو کیسه راوړیده وایي:

حکایت (۲۰۵) فرمایا کہ ایک صاحب کشف حضرت حافظ صاحب رحمۃ اللہ علیہ کے مزار پر فاتحہ پڑھنے گئے بعد فاتحہ کہنے لگے کہ بھائی یہ کون بزرگ ہیں بڑے دل لگی باز ہیں، جب میں فاتحہ پڑھنے لگا تو مجھے فرمانے لگے کہ جاؤ فاتحه کسی مرده پر پڑھو یہاں زندوں پر فاتحہ پڑھنے آئے ہو یہ کیا بات ہے جب لوگوں نے بتلایا کہ یہ شہید ہیں(ارواح ثلاثہ: ۲۰۳، حکایت الاولیاء : ۱۸۸)

**ژباړه:** یو د کشف خاوند د حضرت حافظ قبر ته د فاتحې لوستلو لپاره حاضر شو، د فاتحی د لوستلو نه وروسته یې وویل چې دا بزرګ څوک دی، ډیر زړه راښکونکی دی، چې کله ما فاتحه لوستله نو ده ما ته وویل چه لاړ شه په مړي باندې فاتحه ووایه دلته په ژوندو باندې د فاتحې لوستلو لپاره راغلی یې، نو خلکو وویل دا خو شهید دی.

د دیوبند مدرسې مهتمم قاری طیب وایي: مدرسے دیوبند کے صدر مدرسین کے درمیان کچھ جھگڑا پڑا اس وقت رفیع الدین صاحب مہتمم مدرسہ تھے اور صدر مدرس محمود الحسن صاحب بھی اس جھگڑے میں شریک ہوگئے اور جھگڑا طول پکڑ گیا۔ اسی دوران میں ایک دن علی الصبح بعد نماز مولانا رفیع الدین صاحب رحمہ اللہ نے مولانا محمود الحسن صاحب کو اپنے حجرے میں بلایا ( جو دار العلوم دیوبند میں ہے) مولانا حاضر ہوئے اور بند حجرے کے کواڑ کھول کر اندر داخل

ہوئے موسم سخت سردی کا تھا۔ مولا نارفیع الدینؒ نے فرمایا، پہلے یہ میرا
رویي کا لبادہ دیکھ لو۔ مولانا نے لبادہ دیکھا تو تر تھا۔ اور خوب بھیگ رہا تھا۔
فرمایا کہ واقعہ یہ ہے کہ ابھی ابھی مولانا نانوتوی صاحبؒ جسد عصری کے
ساتھ میرے پاس تشریف لائے تھے جس سے میں ایک دم پسینہ پسینہ ہو گیا۔
اور میرا لبادہ تر بتر ہو گیا اور یہ فرمایا کہ محمود الحسن کو کہہ دو کہ وہ اس
جھگڑے میں نہ پڑے۔ پس میں نے یہ کہنے کے لئے بلایا ہے۔ مولانا محمود
الحسن نے عرض کیا کہ حضرت میں آپ کے ہاتھ پر توبہ کرتا ہوں کہ اس کے
بعد میں اس قصہ میں کچھ نہ بولوں گا۔(ارواح ثلاثہ ص۲٦١)

**ژباړه:** یوه ورځ د دیوبند دارالعلوم د مشرانو استاذانو په منځ کې څه جنجال رامنځته شو او په دې وخت کې د دار العلوم مهتمم رفیع الدین صاحب و او صدر مدرس محمود الحسن صاحب هم په دې جنجال کې شریک شوي وو. دا خبره لرې اوږده شوه، په دې وخت کې یوه ورځ د سهار له مونځ څخه وروسته، رفیع الدین صاحب، مولانا محمود الحسن خپلې حجرې ته راوغوښت، مولانا صاحب راغی او د حجرې ور یې خلاص کړ او ننوتلو، د سختې یخنۍ موسم و، مولانا رفیع الدین صاحب وویل: ته اول زما دا وړین (د وړیو یا مالوچو )څادر ته وګوره مولانا صاحب چې د هغه څادر ته وکتل نو هغه لوند و او اوبه ورڅخه څڅېدلې، بیا یې ورته وویل: داسې کیسه ده، همدا اوس نانوتوي زما خوا ته په خپل دنیاوي جسم سره راغلی و، چې ناڅاپه په خولو کې ډوب شوم او څادر مې لوند شو او دا یې را ته وویل:محمود الحسن ته دا پیغام ورسوه چې له دې جنجال څخه لاس په سر شي نو ما ته د دې خبرې لپاره راوغوښتلې،مولانا محمود الحسن وویل: حضرت زه ستا په لاس توبه کوم چې له دې څخه وروسته به زه په دې کیسه کې هېڅ نه وایم اشرف علي تهانوي د دې کیسې په اړه لیکي:

یہ واقعہ روح کا تمثل ہے اور اس کې دو ہی صورتیں ہو سکتی ہیں ایک یہ کہ جسد مثالی تھا مگر مشابہ جسد عنصری کے، دوسری صورت یہ کہ روح نے خود عناصر میں تصرف کر کےجسد عنصری تیار کر لیا۔ (ارواح ثلاثہ : ص۴٦۴)

ژباړه: دا کيسه د روح د تمثيل ده او دا دوه ډوله کېدای شي، يو دا چې د هغه (قاسم نانوتوي) جسم مثالي و، خو له جسم عنصري سره ورته و، او دويم دا چې د هغه روح په عناصرو کې له تصرف کولو څخه وروسته خپل عنصري جسم (فزيکي جسم يا بدن) جوړ کړی و.

په يو ځای کې اشرف علي تهانوي ليکي: بعض بزرگوں کو جو اہل تصرف ہوتے ہیں عناصر پر قدرت ہو جاتی ہے کہ وہ اس سے چند اجساد کو ترکیب دے کر شکل بدل لیتے ہیں چونکہ روح میں انبساط ہے۔ اس سے ایک روح کو ان چند اجساد کے ساتھ متفق کر کے چند شکلوں میں متشکل ہو سکتے ہیں۔(مقالات حکمت ص ۴۱) **ژباړه:** ځينې بزرگان کوم چې اهل تصرف وي، هغوی ته په عناصرو باندې قدرت حاصلېږي چې هغوی عناصرو ته ترکيب ورکړي او خپل شکل بدل کړي ځکه په روح کې انبساط دی، په دې سره يو روح له څو جسمونو سره اتفاق کولو سره په مختلفو شکلونو کې خپل صورت جوړولی شي.

همدا راز د ديوبند د اکابرو ځيني نور مرکزي عقائد په دې ډول دي: د نېکانو له روحونو څخه د مرستې غوښتنه کول، د الله په اسماؤ صفاتو کې بې ځايه تأويلات کول، د بزرگانو د قبرونو په خوا کې مراقبې کول، بدعي او شرکي تبرکات طلب کول،د نبيﷺ او د خپلو امامانو او نېکانو په اړه غلو (د حد نه تجاوز) کول، الله ته غير شرعي وسېلې نېول، د تصوف په طريقو کې ورننوتل، د نبيﷺ په ويښه لېدلو اعتقاد لرل، صوفي اوراد او اذکار کول او داسې نور ډېرې خرافات يې په عقيده کې شتون لري چې هېڅ معقول تأويل نه قبلوي، دلته يې نه رانقلوو د تفصيل

لپاره ډېرې کتابونه عربو او عجمو علماوو د دوی په نقد کې لیکلي دي باید هغو ته مراجعه وشي او د دوی اصلي څېره وپېژندل شي.

پاملرنه: البته دلته هغه ناخبره مسلمانان مراد نه دي چې هسې د نېک گومانۍ له وجې یوې ډلې ته ځان منسوبوي خو نور د خپلو اکابرو د گمراه کوونکو عقائدو څخه خبر نه وي یا ترې خبر هم وي خو پرې ناخوښ وي بلکې دلته داسې خلک مراد دي چې سره له بصیرته یې دغه عقائد قبول کړې وي او پرې خوښ وي او د دې عقائدو تائید کوي د دې لپاره بحث مباحثه او موالات معادات کوي، او د صوفیت په طریقو کې عملاً ښکیل وي نو د هغوی په گمراهۍ کې هېڅ شک نشته.

## خلاصة البحث:

دا و د صوفیت لارویانو لنډ وضاحت، له دې څخه مونږ ته دا نتېجه په لاس راځي چې د صوفیت لارویانو جنگ ته جهاد ویل صحیح نه دي او نه هم صوفي ته مجاهد ویل صحیح دي بلکې مشرک دی چې د طاغوت په لاره کې جنگېږي. ځکه د شرعي جهاد شرطونه، مقاصد، منهج او تگلاره چې مونږ ته واضحه شوې؛ د تصوف لارویان ترې ډېر لرې دي، بلکې د شرعي جهاد لوی هدف د تصوف شرک له منځه وړل دي اللهﷻ فرمایي:

وَقَٰتِلُوهُمۡ حَتَّىٰ لَا تَكُونَ فِتۡنَةٞ وَيَكُونَ ٱلدِّينُ كُلُّهُۥ لِلَّهِۚ فَإِنِ ٱنتَهَوۡاْ فَإِنَّ ٱللَّهَ بِمَا يَعۡمَلُونَ بَصِيرٞ [سُورَةُ الأنفَال: ٣٩] **ژباړه:** اې مؤمنانو! له دې کافرانو سره تر هغه پورې وجنگېږئ چې هېڅ فتنه (شرک) پاتې نه شي او ټول دین د الله لپاره شي. بیا که هغوی له فتنې څخه لاس واخیسته، نو د هغو د عملونو لیدونکی الله دی.

نو جهاد د شرک ختمولو لپاره مشروع شوی، که هر ډول شرک وي، که د اللهﷻ سره په ذات کې برخه دار جوړول وي لکه د حلول، وحدة الوجود، وحدة الشهود، فناء

في الله او الله ﷻ سره يو ولي يا بزرګ په مرتبه کې برابرول يا يې د اللهﷻ نائب مطلق ګڼلو شرک او که د اللهﷻ سره په عبادت کې برخه دار جوړول وي لکه غير الله ته را مدد شه ويل، فرياد رسان يې ګڼل، غير شرعي وسيلې نيول، حرام تبرکات لټول، قبرپرستي او داسې نور او که د اللهﷻ سره په کارونو کې برخه دار جوړول وي لکه پيران په مخلوق کې تصرف کوونکي ګڼل، د پيرانو په اړه د مخلوق د ساتنې او حفاظت عقيده لرل ، د مړو روحونه حاضرول او داسې نور کارونه چې د انسان له وس څخه بهر وي.

او که د اللهﷻ سره په نومونو يا صفتونو کې برخه دار جوړول وي لکه پيغمبر، پير يا بزرګ غيب دان ګڼل، او د سينو له خبرو يې باخبره ګڼل، او د اللهﷻ ډېرى صفات ورته ثابتول.

نو په جهاد سره به دا ټول شرکيات ختمېږي او عبادت به يوازې الله ته خاص کېږي خو بالعکس صوفيان د دغه شرکياتو د اعادې لپاره جنګېږي د ابن عربي، ابن سبعين، حلاج او سهرودي او نورو، چې کوم مناهج او عقائد دي د همدغې لپاره جنګېږي او دا يو حقيقت دى چې مونږ په خپلو سترګو وليدو، کوم ځاى کې چې هم صوفيه واکمن دي زور او سلطه يې ده نو هلته د اللهﷻ توحيد محفوظ نه دى، موحدين محفوظ نه دي، بلکې شرک په کې په مختلفو بڼو لېدل کېږي، شرکي مزارونه ابادول،د صوفيت طريقت ته وده ورکول، د قبرونو تعظيم، بدعي او شرکي وردونه،د حلول او وحدة الوجود عقائدو خپراوى، د پيرانو تعظيم، ډول ډول القاب ورته ورکول او داسې نور ډېرى شرکيات په کې ليدل کېږي، نو د داسې خلکو جنګ ته څنګه جهاد وويل شي چې شرک ورسره قوي کېږي او توحيد ورسره نړېږي، د توحيد مراکز بندېږي او د شرک مراکز خلاصېږي دا هېڅ کله جهاد نشي کېداى نبيﷺ ځان سره يو مشرک هم جهاد ته نه دى بوتلى بلکې ورته فرمايلي دي:

أَسْلِم، ثم قَاتل (متفق عليه). اسلام راوړه بيا وجنګېږه. ارجِعْ،فلَن أستَعينَ بمشرِكٍ(رواه الترمذی). بېرته وګرځه زه هيڅکله له مشرک څخه مرسته نه اخلم. خو دا چې کله يو لښکر ټول په ټوله د ابن عربي، حلاج، سهرودي او نورو زنادقه وو له اتباعو تشکيل شوی وي نو د هغوی جنګ ته څنګه جهاد وويل شي آيا دا به لوی درواغ نه وي؟!

**الغرض:** صوفيه ۇ ته مونږ هغه دعوت ورکوو کوم چې نبيعليه‌السلام دغه مشرکينو ته ورکړی: أَسْلِم، ثم قَاتل، اسلام راوړه هر ډول شرک پرېږده الله ته توبه وباسه، بيا له هغې وروسته د مشروع اهدافو لپاره د هر طاغوت په خلاف وجنګېږه ستا جنګ به جهاد وي، ستا جنګ به د الله په لاره کې وي، اعمال به دې الله ته د قبلېدو وړ وي، دنيا او اخرت کې به الله عزت درکړي او که داسې نه وي نو په ټوپک سره ستا وېره نه قلارېږي، له غلامۍ څخه نشې ازادېدلی. ته به د يو کاڼي نه هم ويرېږې، د بوټي نه به هم ويرېږې او د قبر نه به هم ويرېږې حتی چې د نړۍ د ټولو طواغيتو نه به وېرېږې او ټول عمر به سرکوزی يې، دغه وېره به دې هيڅکله قلاره نشي. که غواړې چې په د دنيا او اخرت کې له ويرې خلاص شې توحيد ته راوګرځه، په توحيد کې اطمينان دی، په توحيد عقېده کې امن او خوشالي ده، په توحيد عقېده کې نجات او کاميابي ده اللهﷻ فرمايي: الَّذِينَ ءَامَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوٓا إِيمَٰنَهُم بِظُلْمٍ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمُ الْأَمْنُ وَهُم مُّهْتَدُونَ [سُورَةُ الأنعَام: ٨٢] **ژباړه:** په حقيقت کې خو امنيت د هماغو کسانو لپاره دی او پر سمه لاره برابر هماغه کسان دي چې ايمان يې راوړی، او خپل ايمان يې په ظلم(شرک) نه دی ملوث کړی.

# جهاد او اخوانيزم!

دلته اوس د بلې ډلې يادونه کوو چې د دې ريښې هم د نړۍ ډېرو هيوادونو ته خپرې شوي دي تر دې چې ډېری جهاد پلوه يا د جهاد دعوه کوونکې ډلې هم له دې څخه متاثره دي او د همدغه نظريې لپاره خپله مبارزه پر مخ وړي چې دغه نظريه له اخوانيزم څخه عبارت ده. د دې نظريې بنسټ حسن البنّا چې د مصر اوسېدونکی و، ايښی دی.

چې په کال ۱۹۲۸ م کې يې د اخوان المسلمين په نوم جماعت تاسيس کړ چې بيا ډېر په چټکتيا سره د نړۍ په مختلفو هيوادونو کې خپور شو، حسن البنّا چې د اخوان المسلمين جماعت المرشد العام (عمومي رئيس)يادېږي د اخوانيزم نظريې ترڅنګ د صوفيت لاروی هم پاتې شوی چې د حصافيه شاذليه طريقې سره يې اړيکه لرله. هغه طريقه چې په وحدة الوجود، د قران په باطني تأويل، د اولياؤ په اړه غلو کول او نورو بدعي او شرکي عقائدو باندې مشهوره ده چې په دې د هغه خپل اقرار هم موجود دی ويلي دي: تلقيت الطريقة الحصافية الشاذلية عن السيد عبد الوهاب وآذنني بأورادها ووظائفها. (مذكرات الدعوة والداعية لحسن البنا ص ۲۷۱) - **ژباړه:** ما حصافيه شاذليه طريقه د سيد عبد الوهاب نه اخيستې او ماته يې د دې طريقې د اورادو او وظيفو اجازه راکړې ده.

د حسن البنّا ايجاد کړې اخوانيزم نظريه ځينې ځانګړې اساسات او اصول لري چې لنډيز يې په دې توګه دی: د ډيموکراسۍ د قانون کلکه پلوي، د پارلماني نظام کلک تائيد،د څو ګوندېزه نظام لپاره مبارزه، د بشري حقونو په احترام ټينګار، په ارجاء کې غلو کول، د دينونو په نېږدېوالي کار کول، د روافضو سره کلکه دوستانه او داسې نور اساسات لري چې په دې بحث کې به د دوی د مشرانو په اقوالو سره دا خبره ثابته شي ان شاء الله.

### ❖ د ډیموکراسۍ پلوي.

ډیموکراسي چې یو کفري دین دی او د دې زماني لوی طاغوت دی. د اخوانیانو مشران ورته ډېر احترام لري او د اسلامي نظام ریښتونی بدیل یې ګڼي. او د دې لپاره هر ډوّل قرباني ورکوي؛ تر دې چې د دوی مشر حسن البنّا هم د مصر پارلمان ته د فاروق الأول په دوره کې دوه ځلې کاندید شوی دی. یو کرت په کال ۱۹۴۲م کې او بل کرت په کال ۱۹۴۴م کې کاندید شوی دی چې دا خبره یو اخواني ژورنالېست جابر رزق په خپل کتاب **"حسن البنّا بأقلام تلامذته ومعاصریه "** کې کړې ده چې بیا ورته په همدې لاره کې مرګ هم ورنصیب شوی. کله چې ورځخه انګریزانو د مصر د پارلماني انتخاباتو څخه د شا ته کېدلو غوښتنه وکړه او اخطار یې ورکړ خو دا چې نوموړي پرې څه پرواه ونکړه او په خپله اراده کلک پاتې شو نو پایله یې دا شوه چې د سړک په سر یې ترور کړ.

د ډیموکراسۍ قانون په تائید او پلوۍ کې حسن البنا یوازې نه و بلکې د دې جماعت چې څومره غړي هم تېر شوي دي د ټولو همدغه تګلاره وه او ده چې دا خبره به د دوی له ویناؤ څخه ښه په ډاګه شي ان شاء الله.

د مصر د ډیموکراسۍ قانون په اړه حسن البناء وایي: یمکن أیضًا أن نقول في اطمئنان أن القواعد الأساسیة التي قام علیها الدستور المصري لاتتنافی مع قواعد الإسلام، ولیست بعیدة من النظام الإسلامي ولا غریبة عنه. (رسالة نظام الحکم).

**ژباړه:** موږ دا هم په ډاډ سره ویلای شو چې د مصري قانون اساسي قواعد د اسلام له قواعدو سره په ټکر کې نه دي او دغه قواعد د اسلامي نظام له قواعدو څخه لرې نه دي او نه ورځخه ناشنا دي.

او په بل ځای کې وایي: فنحن نُسلّم بالمبادئ الأساسیة للحکم الدستوري باعتبارها متفقةً، بل مستمدة من نظام الإسلام.(رسالة المؤتمر الخامس).

**ژباړه:** مونږ د اساسي قانون د قواعدو تابع يو، له دې امله چې دغه قواعد له شريعت سره موافق دي بلکې له اسلامي نظام څخه راخستل شوي دي.

او بل ځای کې وايي: يعتقد الإخوان المسلمون أن نظام الحكم الدستوري هو أقرب نظم الحكم القائمة في العالم كله إلى الإسلام. إذا هو ليس الإسلام، وإنما هو نظام قريب من الإسلام وهم لا يعدلون به نظامًا آخر.(المؤتمر الخامس) - ژباړه: اخوان المسلمين په دې باور دي چې د اساسي قانون په بنسټ جوړ شوی نظام، د موجوده حکومتي نظامونو په پرتله اسلام ته تر ټولو نېږدې دی. نو دا اسلامي نه دی، بلکې اسلام ته نېږدې نظام دی چې دوی يې له بل نظام سره برابر نه ګڼي.

او بل ځای کې وايي: إن من نصوص الدستور المصري ما يراه الإخوان المسلمون غامضًا مُبهما، يدَعُ مجالًا واسعًا للتأويل والتفسير الذي تمليه الغايات والأهواء، فهي في حاجة إلى وضوح، وإلى تحديد وبيان ... هذه واحدة، والثانية: هي أن طريقة التنفيذ التي يُطبّق بها الدستور، ويتوصل بها إلى جني ثمرات الحكم الدستوري في مصر، طريقة أثبتت التجارب فشلها. **ژباړه:** د مصر د اساسي قانون په متونو کې ځيني هغه څه دي چې اخوان المسلمين يې مبهم ګڼي، چې د تأويل او تفسير لپاره پراخې خونې پرېږدي، هغه چې د اهدافو او هيلو له مخې ټاکل کېږي نو دا وضاحت، تعين او بيان ته اړتيا لري، دا خو يوه خبره شوه، دويمه دا چې هغه طريقه چې په هغې سره اساسي قانون نافذېږي چې له امله يې په مصر کې د اساسي قانون په بنسټ ولاړ حکومت څخه ګټه لاس ته راځي؛ داسې طريقه ده چې تجربو يې ناکامي ثابته کړې ده. (مقصد د دې عبارت دا دی چې د وضعي قانون په بنسټ د قائم شوي نظام ګټې هم شته چې دغه ګټې لاس ته راتلی شي خو د ناکام تطبيق له امله دغه ګټې لاس ته رانغلې).

نو حسن البناء دې خلکو ته مشوره ورکوي چې د قانون په تطبيق نظر ثاني وکړي او بريالۍ طرحې د تطبيق لپاره جوړې کړي او همداراز د قانون کومې مادې چې ډېرې معناګانې لري نو په هغو هم نظر وکړي او د مبهمو عبارتونو مقصد يې واضح کړي.

بيا وروسته وايي: ولهذا يعمل الإخوان المسلمون جهودهم حتى تُحدّد النصوص المبهمة في الدستور المصري، وتُعدّل الطريقة التي يُنفّذ بها هذا الدستور في البلاد، وأظن أن موقف الإخوان قد وضح بهذا البيان وردّت الأمور إلى نصابها (المؤتمر الخامس). **ژباړه:** له همدې امله اخوان المسلمين د مصر په اساسي قانون کې د مبهم متنونو د تعين او په هېواد کې د اساسي قانون د پلي کېدو په طريقه کې د تعديل لپاره سخت کار پيل کړی او زه باور لرم چې د اخوان المسلمين دريځ په دې بيان سره روښانه شوی وي او کارونه يې خپل عادي حالت ته راستانه شوې وي.

اخواني «عالم» قرضاوي وايي: په اسلامي حرکت واجب دي....چې همېشه د سياسي ازادۍ په صف کې ولاړ وي، چې هغه د اصلي ډيموکراسۍ په شکل کې موجوده ده» [أولويات الحركة الإسلامية].

**د اخواني ګوند د څلورم مرشد عام محمد حامد ابو النصر څخه پوښتنه وشوه،** ځيني خلک تهمت لګوي چې اخوانيان د ډيموکراسۍ خلاف دي، د ګڼ تنظيمه نظام سره دښمني لري نو د دې تهمت په اړه ستاسو نظر څه دی؟» هغه په ځواب کې وويل: څوک چې دغه خبره کوي هغه اخوانيان نه پېژني؛ د لرې پرې تهمتونه تپي مونږ په پوره او کلي ډؤل په ټولو جوانبو او معناو کې د ډيموکراسۍ سره يو مونږ د جماعتونو او په تعدد کوم اعتراض نه لرو، ځکه يواځې ملت هغه څوک دی چې په افکارو او اشخاصو واک لري» [مجلة العالم].

د اخوانیانو شپږم مرشد عام مامون الهضیبي وایي:«اخوان المسلمین د حقیقي ډیموکراسۍ سره موافقه لري» [مجلة المصوّر].

**د اخوانیانو د «الارشاد» دفتر غړی عبد المنعم أبو الفتوح وایي:** «مونږ دغو ټولو نظامونو ته کوم چې د ملتونو د ارادې پرته راغلې دي- پدې نظر ګورو چې دغه غیر مشروع نظامونه دي او مونږ به هېڅکله د دې په قانوني مشروعیت اعتراف ونه کړو ترڅو چې د ټاکنو له صندقه رانشي، مونږ د هر هغه نظام احترام کوو چې د ټاکنو او انتخاباتو له صندقه راشي اګر که اسلامي شعارونه نه لري، مونږ د غیر قانوني او د ملت له ارادې پرته راغلیو نظامونو سره همېشه په ټکر کې یو، لیکن زمونږ ټکر به هېڅکله مسلح نه وي» [د الجزیره تلویزیون سره مرکه].

**یو اخواني مخکښ مشر؛ عصام العریان وایي:** «اخوانیان دغه قانوني حکم ته پدې نظر ګوري چې دا اسلام ته تر ټولو نظامونو ډېر نږدې دی، ځکه خو اخوانیان لدې پرته بل کوم ځانګړی قانون نه اخلي؛ لکه چې د دغې خبرې پخلی د شهید حسن البنا د پنځم کانفرانس په پیغام کې وشو... مونږ ولې پدې خبره زور راوړو او ټینګار کوو چې اسلامپاله د ډیموکراسۍ خلاف دي؟ دا ډیر لوی تور دی؛ ځکه مونږ تر ټولو لومړی ډیموکراسۍ ته بلونکي یو، د هغې تطبیق کوونکي یو او ترمرګه به له هغې دفاع کوو» [مجلة لواء الإسلام].

په عراق کې د حزب العراقي اخواني تنظیم یو مشر چې نوم یې ادریس الحاج و په خپلې یوې مرکه کې ویلي وو چې دغه مرکه یې د شورا په نوم ورځپاڼه کې چې په ۲۰۰۳م کال او ۲۰۰٤م کال کې په موصل کې چاپ کېدله خپره شوې وه؛ له نوموړي څخه خبریال پوښتنه کوي، ورته وایي: تؤمنون بالدیمقراطیة؟ **"آیا تاسو په ډیموکراسۍ ایمان لرئ؟"**

هغه ورته په ځواب کې وایي: نعم **"هو"**.

بیا ورڅخه پوښتي: بالتعددية الحزبية؟ **"د ګڼ تنظیمه /څو ګوندیزه نظام په اړه د جواز عقیده لرئ؟"** هغه ورته په ځواب کې وایي: ما من لقاء الا وأءكد أننا نؤمن بالتعددية الحزبية "ما په هره مرکه کې د دې خبرې ټینګار کړی چې مونږ د ګڼ تنظیمه نظام په اړه د جواز عقیده لرو".

بیا ورڅخه پوښتنه کوي: ستاسو ډله خو اسلامي ده نو آیا له مسلمان پرته نور خلک په خپله ډله کې قبلوئ؟

هغه ورته په ځواب کې وایي: أبوابنا مفتوحة للجميع فقط يأتو "زمونږ دروازې هر چاته خلاصې دي، یوازې چې مونږ ته راشي.

همدا راز اخواني مفکر فرید عبد الخالق په خپله یوه مرکه کې **"المصور"** مجلې ته ویلي وو: ان الإسلام لايتعارض مع قيام أحزاب سياسية ولايتعارض مع الديمقراطية بل ان لبّ الديمقراطية من صميم الإسلام. ( ۲۳۱۷ شماره ۲۹ رمضان ۱۴۰۶ )

**ژباړه:** اسلام د سیاسي ګوندونو له جوړېدو سره په ټکر کې نه دی، او نه هم د ډیموکراسۍ سره په ټکر کې دی بلکې د ډیموکراسۍ اصل د اسلام له زړه (اساس)څخه دی.

د بیان په آزادۍ کې د مصر د اخوانیانو دریم مرشد عام عمر التلمساني په یوې مرکه کې چې په ۱۹۸٦/٥/۲۷م کې خپره شوې وه ویلي وو:

إننا نقف مع الأحزاب كلها موقف الاحترام الحر لرأي الآخرين وإذا كنت حريصا على أن يأخذ الناس برأيي، فلماذا أحرم على الناس ما أبيحه لنفسي؟ وهل من الحرية أن أحول بين الناس وبين الاعتداد بآرائهم؟ بعد أن يمنحهم أحكم الحاكمين هذا الحق في وضوح لا لبس فيه {فمن شاء فليؤمن ومن شاء فليكفر}.

**ژباړه:** مونږ د ټولو اړخونو سره د نورو نظرونو ته په آزاده درناوي ولاړ یو (یعني له کمونیزم، سېکولرزم او له دې ټولو کفري ډلو سره د بیان د آزادۍ په اړه یو شان

نظريه لرو)او کله چې زه دې ته لېواله يم چې خلک دې زما نظر واخلي (عمل دې پرې وکړي) نو زه ولې خلک له هغه څه څخه منعه کړم چې خپل ځان ته يې جائز ګڼم؟ (يعنې دا خو څه عدل نه دی چې زه دې د رای آزادي ولرم او په بل چا دې پابندي وي) او ايا زما لپاره د دې آزادي ده چې زه د خلکو او د هغوی رای ته د اعتبار ورکولو تر منځ پرده واقع شم وروسته له هغه چې تر ټولو غوره فېصله کوونکي ذات په واضحه توګه پرته له شکه هغوی ته دا حق ورکړو. فرمايي: که څوک وغواړي ايمان دې راوړي او که وغواړي نو کفر دې وکړي".

اخوانيانو د طاغوتي دستور په احترام او پلوي بس نه کړل بلکې په کال **۱۹۵۲**م کې يې په خپلو قلمونو د مصر لپاره د يوه قانون مسوده تياره کړه، او په دغه دستور د اخوانيانو تاسيسي کميسيون هم اقرار وکړ، په دغه دستور او قانون کې داسې راغلي دي:

**يوولسمه ماده:** مخکې له دې چې د مجلس**(پارلمان)** غړي خپل کار پيل کړي دوی به د پارلمان په تالار کې دا ډول قسم کوي چې دوی به د الله تعالی او بيا د وطن لپاره مخلصه اوسېږي او د دغه دستور **(قانون)** به نصًّا او روحاً تابعداري کوي.

**اولسمه ماده:** په پارلمان کې چې غړی کومې رای او افکار وړاندې کوي په هغې به دوی نه نېول کېږي.

**اتلسمه ماده:** کله چې د پارلمان کار روان وي نو د پارلمان يو غړی به تر هغې نه توقيف کېږي چې مجلس اجازه نه وي ورکړې.

**نولسمه ماده:** د مجلس څخه به هېڅ يو غړی نه منفک کېږي ترڅو چې مخکې مجلس په هغې پرېکړه نه وي کړې او هغه هم په اکثريت سره.

**شپږ ويشتمه ماده:** مخکې له دې چې د دولت مشر خپل کار پيل کړي د مجلس وړاندې به دغه ډول قسم کوي: «زه په لوی الله قسم کوم چې زه به د دغه قانون

نصاً او روحاً احترام کوم.

**اوه اویا یمه ماده:** خلک آزاد او په کرامت حقوقو او ازادۍ کې مساوي له موره پیدا کېږي، د دوی ترمنځ به د ذات لغت او دین په خاطر هېڅ ډؤل توپیر نه کیږي، په ملت هم فرض دي چې د یو بل سره د ورور ولۍ په روح معامله وکړي.

**اته اویا یمه ماده:** د قوانینو په وړاندې د هر فرد حق دی چې ازاد ژوند وکړي او مساوي حقوق ولري او په امن او اطمنان ژوند وکړي.

**اته اتیا یمه ماده:** د هر فرد حق دی چې د فکر، عقیدې او دین آزادي ولري.

**نهه اتیا یمه ماده:** د هر فرد حق دی چې د رای او تعبیر آزادي ولري.

**نوي یمه ماده:** د هر فرد حق دی چې په ازادۍ سره غونډې وکړي او سولییز تنظیم جوړ کړي. **(من کتاب: مشروع دستور إسلامي للدولة المصرية عام ١٩٥٢م)**

د ډیموکراسي نظام په تائید کې د اخوانیانو د مشرانو ویناوې ډېرې زیاتې دي. دا کومې چې ذکر شوې، دا یې هسې نمونه وه. په دغه ټولو ویناو کې دوی دا هڅه کړې چې د اروپا څخه را انتقال شوې ډیمکراسۍ ته مشروعیت ورکړي او د اسلامي نظام یو ښه بدیل یې مسلمانانو ته معریفي کړي، خو د داسې نظامونو په هکله که د سلفو ویناو ته رجوع وشي نو د دوی او د هغوی تر منځ به ډېر توپیر ووینئ. په ځانګړي توګه د تاتاري نظام په هکله د شېخ الاسلام ابن تیمیه، ابن کثیر، امام شنقیطي او نورو علماوو ویناو ته که پام وشي نو د ډیموکراسۍ نظام او نورو ټولو شرکي نظامونو بطلان ترې له ورایه ښکاري چې دلته یې اقوال نه راوړو په نورو ځایونو کې مونږ د ډیموکراسۍ رد کړی دی او هم د کتاب په پیل کې د ډیموکراسۍ په رد کې څه نا څه دلایل وړاندې شوي دي په هماغه بسنه کوو.

## ❖ د پارلماني نظام کلک تائید!

دا چې پارلماني نظام يو کفري نظام دی او مشرعين په کې له اللهﷻ سره د حاکميت په توحيد کې ځانونه شريکوي او د اسلام خلاف قوانين تصويبوي، خو سره له دغه کفرياتو بيا هم اخوانيان د پرلماني نظام ډېر کلک تائيد او ملاتړ کوي او د شريعت د تطبيق لپاره دا يوه غوره لاره ګڼي، چې په دې اړه يې د مشرانو ويناوې ستاسو مخې ته وړاندې کوو:

په مخکې عنوان کې د حسن البنّا او نورو مشرانو وېناوې د ډيموکراسی او پارلماني نظام په تائيد کې ذکر شوې .اوس دلته د پارلماني نظام د تاريخ په اړه د حسن البنّا وينا ته وګورئ هغه وايي: ونحن في حياتنا العصرية قد نقلنا من أوروبا هذا النظام النيابي، الذي تعيش في ظله حكوماتنا الآن، ووضعنا دستورنا على أساسه.

**ژباړه:** مونږ په خپله موجوده زمانه کې دغه پارلماني نظام له اروپا څخه رانقل کړی دی، هغه نظام چې تر سيوري لاندې زمونږ موجوده حکومتونه قائم دي او مونږ د دې په اساس خپل قوانين جوړ کړي دي.

**بيا وروسته پوښتنه کوي وايي:** دغه پارلماني نظام تر کومه حده له اسلام سره موافق دی؟ او تر اوسه پورې مو ترې څه ګټه لاس ته کړې ده؟

نو د دې په ځواب کې وايي: يقول علماء الفقه الدستوري إن النظام النيابي يقوم على مسؤولية الحاكم، وسلطة الأمة، واحترام إرادتها، وإنه لا مانع فيه يمنع من وحدة الأمة واجتماع كلمتها، وليست الفرقة والخلاف شرطاً فيه، وإن كان بعضهم يقول إن من دعائم النظام النيابي البرلماني: الحزبية, ولكن هذا إذا كان عرفًا فليس أصلاً في قيم هذا النظام، لأنه يمكن تطبيقه بدون هذه الحزبية وبدون إخلال بقواعده الأصلية .

وعلى هذا فليس في قواعد هذا النظام النيابي ما يتنافى مع القواعد التي وضعها الإسلام لنظام الحكم، وهو بهذا الاعتبار ليس بعيداً عن النظام الإسلامي ولا غريبًا عنه . **ژباړه:** د اساسي قانون پوهانو ويلي دي چې پارلماني نظام د حاکم په مسؤليت او د ولس په سيادت **(مشرۍ)** او د هغوی د ارادو په احترام قائم دی **(يعنې، که ولس هر څه غواړي او هر څوک مشر کول غواړي نو د هغوی د ارادو او غوښتنو احترام به کېږي ځکه چې حاکم اعلی ولس وي)** او په دې نظام کې له اتفاق څخه هېڅ شی منع کوونکی نشته او نه په دغه نظام کې اختلاف شرط شوی دی، که څه هم ځيني خلک وايي چې د پارلماني نظام ستنې تنظيم پرستي او اختلافات دي خو دا هسې دود دی د نظام په اصولو کې اختلافات او تنظيم پرستي نشته، ځکه چې د دې نظام تطبيق له تنظيمونو او اختلافاتو څخه پرته هم ممکن دی او پرته له دې چې اصلي قواعدو ته په کې زيان ورسېږي، تطبيق يې ممکن دی، نو له دې امله د دې نظام په اصولو کې داسې څه نشته چې د اسلام له هغه قواعدو سره په ټکر کې وي چې د حکومت چلولو لپاره يې وضع کړي دي نو په دې اعتبار سره دغه پارلماني نظام له اسلامي نظام څخه لرې نه دی او نه ورڅخه ناشنا دی". دا خبرې يې ټولې په خپلو رسائلو کې ليکلي دي.

نو دلته د اخوانيانو مشر د پارلماني نظام په اړه پخپله دا اقرار کړی دی چې دا نظام مونږ له بت پاله اروپا څخه را انتقال کړی چې همدا يوه خبره د دوی په رد کې کافي ده په دې باب کې د دوی ټول تراشل شوي دلايل له منځه وړي.

## ❖ د څو ګونديزه نظام لپاره مبارزه!

د څو ګونديزه نظام لپاره د اخوانيانو مبارزه هم له چا پټه نه ده چې دا د ډيموکراسۍ يو لوی اصل دی.

د دې مقصد دا دی چې په ملک کې ګڼ تنظيمه نظام راوستلو ته اجازه ورکول لکه د کمونستانو، سيکولرانو او نورو، د هغوی هر ډول فعاليت ته جواز ورکول، دعوت ته يې آزادي ورکول، رسنيو ته يې آزادي ورکول، او په حکومت کې ورته پوره برخه ورکول تر دې چې د ډېرو رايو په تر لاسه کولو سره ورته د حکومت مشري ورکول، چې دا د اسلام له اصولو سراسر خلاف کار دی خو اخوانيان د دې د جواز قائل دي او د همدې لپاره يې خپله مبارزه پيل کړې ده، په راتلونکو کرښو کې د دوی ويناو ته کتنه کوو:

احمد سيف الإسلام چې د حسن البنّا ځوی دی **"المجتمع"** ورځپاڼې ته په يوې مرکه کې ويلي وو: کله چې خبريال ورڅخه دا پوښتنه وکړه: ما رأيکم وما موقفکم من حق تکوين الأحزاب لجميع الإتجاهات والإنتماءات ومن ضمنها الشيعيون؟".

**ژباړه:** "تاسو د داسې تنظيمونو جوړولو په اړه څه نظر لرئ چې هر اړخيزه وي او له مختلفو نظرياتو لرونکو څخه جوړ وي چې کمونستان هم پکې وي؟" داسې واضحه پوښتنه يې ورڅخه کړې وه نو هغه ورته ويلي وو: لها هذا الحق والإسلام لايجبر الإنسان على الإلتزام بعقيدة.... لَآ إِكْرَاهَ فِي الدين [البقره: ٢٥٦].

**ژباړه:** "دغو کمونستانو ته د تنظيم جوړولو حق حاصل دی ځکه اسلام د عقيدې په اړه په چا زور نه کوي او بيا يې په استدلال کې آيت ولوستو". (المجتمع ورځپاڼه شماره٨٨٤ ٩،،جمادي الاولى ١۴٠٨ هـ ).

**د اخوانيانو دويم «مرشد عام» حسن الهضيبي وايي: «د کمونستی مخه بايد په سختی او قانون سره ونه نيول شي، زما په نيزد ، پدې کې کوم مانع نشته چې**

کمونستان دې يو ښکاره ګوند ولري، ځکه اسلام د هغو لارو د سلامتيا ضمانت کړی چې هېوادونه پرې چلېږي» [صحيفة النور].

د اخوانيانو دريم مرشد عام عمر التلمساني وايي: «مونږ د ټولو ګوندونو سره د نورو د رايو د احترام موقف اختياروو، ځکه چې کله زه په دې حرص لرم چې بايد خلک دې زما رايه واخلي نو نور خلک ولې د هغه څه نه منع کړم چې د خپل ځان لپاره يې مباح ګڼم! او آيا دا به کومه آزادي وي چې مونږ د خلکو او د هغوی د رايو ترمنځ پرده او مانع واقع شو!» [مجلة المجتمع کما تقدم]

د اخوانيانو څلورم «مرشد عام» ؛ محمد أبو نصر وايي: «مونږ عقيده لرو چې بايد اسلامي نظام د سياسي ګوندونو تعدديت ته اجازه ورکړي، ځکه چې هر څومره ګوندونه بېلابېل او ډير شي نو فايده پکې ډېره ده، مونږ دا عقيده هم لرو چې بايد اسلامي نظام د نويو ګوندونو د تشکيل اجازه هم ورکړي، حتی هغو تحريکونو ته هم اجازه ورکړي چې مونږ د هغې په اړه وايو چې هغه د اسلام سره ټکر لري، لکه: کميونستي تحريک او سيکولر تحريک، دا پدې خاطر چې مونږ ته زمينه برابره شي چې په دليل سره د هغوی مقابله وکړی شو او دا له دې بهتره ده چې دغه تحريکونه په پټو مذهبونو تبديل شي، نو پدې بنا زمونږ سره په دې خبره کې هېڅ مانع نشته چې په يو اسلامي دولت کې دې کمونستي ګوند جوړ شي» [مجلة العالم].

اخواني پارلماني غړی محمد جمال حشمت وايي: «مونږ پدې ايمان لرو چې مشري او بادشاهي د يو نه بل ته منتقل کېدی شي... حتی چې [د غير مسلمانو ] لپاره هم ممکن ده ترڅو چې دغه اختيار د ملت په لاس کې دی او هغوی اختيار کړی دی، ځکه مونږ پدې ايمان لرو چې ملت د واک سرچينه ده، ملت به واکمن اختياروي، ملت به ورسره حساب کوي او ملت به يې له چوکی لرې کوي» [الجزيره سره مرکه]

همداراز د سوريا حزب الإخوان ډلې يوه غونډه کړې وه چې له غونډې وروسته يې خبرتيا خپره کړه چې په هغه خبرتيا کې يې د بشار نصيري حکومت له احتمالي سقوط څخه وروسته د راتلونکي حکومت په اړه خپل دريځ داسې څرګند کړی وو. ليکلي وو: نريدها دولة ديمقراطية تعددية تداولية. **"مونږ ديموکراتيک دولت غواړو چې ګڼ تنظيمه وي او په سوله ييزه توګه د رای په ورکولو سره رامنځته شوی وي.**

احمد ياسين چې د فلسطين د حماس ډلې بنياد يې ايښې دی؛ هم يوه مرکه کړې، مرکچيانو ورڅخه پوښتنه کړې: د فلسطين ولس خو ډيموکراسي غواړي، نو ته ورسره ولې ضد کوې؟ احمد ياسين ورته په ځواب کې وايي: وأنا أيضا اريد دولة ديمقراطية متعددة الأحزاب والسلطة فيها لمن يفوز في الإنتخابات. **باړه** "زه هم يو ديموکراتيک، څو ګوندېزه دولت غواړم، چې واک په کې د هغه چا وي چې ټاکنې وګټي".

خبريال بيا ورته وايي: لو فاز الحزب الشيوعي فماذا يكون موقفك؟ "که چېرې د کمونسټانو ګوند کامياب شي نو ستا دريځ به څه وي؟"

هغه ځواب کې ورته وايي: حتى لو فاز الحزب الشيوعي فسأحترم رغبة الشعب الفلسطيني "تردې که کمونسټ ګوند هم رای وګټي، نو زه به د فلسطين د خلکو هيلو ته درناوی وکړم.

**(أحمد ياسين الظاهرة المعجزة واسطورة التحدي: ١١٦ــ١١٨، كما نقله أبو بصير الطرطوسي- رجل سيئ-في كتابه: حكم الإسلام في الديمقراطية والتعددية الحزبية)**

دا د اخوانيانو د مشرانو ويناوې دي چې د ګڼ تنظيمه نظام د جواز لپاره يې کړي دي خو که په دې اړه د نبي عليه السلام او د صحابه و تعامل ته کتنه وشي نو د دوی د خبرو بطلان به ډېر په اسانی درک شي. هغوی د اصلي کافر او مرتد سره په کومه طريقه چلېدلي دي، ايا ځان ته يې رانبږدې کړي دي؟ د دعوت تائيد يې ورله کړی؟ د بيان آزادي يې ورته ورکړې؟ په اسلامي خلافت کې يې ورته مشري ورکړې؟

د ګوند آزادي يې ورکړې؟ او که د هغوی د هر ډول اسلام ضد فعاليت مخنيوی يې کړی، جزيه يې پرې مقرره کړې، د اسلامي دولت ساحو نه يې شړلي او يا يې هم په اسلام مجبوره کړي دي؟ دا خبرې د صحابه ؤ په سيرت کې ښېخي واضحه دي. په يوه ادنی علم لرونکي باندې هم پټې نه دي، نو له دې وجې دلته يې د ترديد لپاره دلايل نه راوړو په دې اړه بايد د صحابه ؤ سيرت ته رجوع وشي او د اسلامي نظام عملي ډانچه له هغوی څخه وپېژندل شي.

## ❖ د بشري حقونو په احترام ټېنګار!

بشري حقونه کوم چې د کفارو له خوا تشريح شوي، د اسلام سراسر ضد دي. د ولاء براء عقيده په کې ختمه شوې، د ښځو او سړيو تر منځ شرعي فرقونه په کې له منځه تلي، د شرعي حدوداتو مخنيوی په کې شوی او نور ډېر مفاسدو ته په کې لاره خلاصه شوې، خو سره له دغې اخوانيان بيا هم د دې احترام او درناوي ته قائل دي چې دلته به د دوی له ويناوو څخه تاسو ته دا خبره ښه په ډاګه شي:

**اخوانيان په يوه رسمي بيان کې وايي:**

**د بشري حقوقو قضيه... مونږ خپلو ځانونو، زمونږ څخه اخستونکو او چاپېره ټولې دنيا ته وايو: مونږ د بشري حقوقو د احترام کوونکو د کاروان په سر کې قرار لرو، مونږ د ټولو خلکو لپاره دغه حقوق تامينول غواړو او د قانون او اخلاقو په چوکاټ کې د دغو حقوقو ترلاسه کولو ته زمينه برابروو، زمونږ پدې ايمان دی چې بشري آزادي د هر خير پرمختګ او نوښت لاره ده. په بشري حقوقو او آزادی که د هرې خوا تېری وشي او د هر شعار لاندې وي حتی که د اسلام د شعار لاندې ولې نه وي، نو پدې د انسان انسانيت ته ضرر رسېږي او انسان له هغه مقام څخه راښکته کوي چې الله ﷻ ورته اختيار کړی او هم د انسان او د هغه د طاقتونو او مواهبو**

**ترمنځ حائل واقع کیږي... په ټولو عاقلانو او مؤمنانو لازم دي چې په هر ځای کې د ازادۍ او بشري حقوقو څخه په ګټو اخیستو کې د مساوات په چیغو خپل غږونه پورته کړي، ځکه، دغه مساوات هغه یواځینۍ حقیقي لاره ده چې په نړۍ واله او اجتماعي سطحه سوله رامنځته کړي او داسې یو نوی نړیوال نظام رامنځ ته کړي چې د ظلم، زیاتي او ضرر رسونې مخه نیسي» [بیان للناس].**

**اخواني عبد المنعم ابو الفتوح وایي:**

**«دغه زمونږ او د ټولې مصري ټولنې قضیه ده، یوازې د اخوانیانو قضیه نه ده. د آزادۍ، بشري حقوقو قضیه او د عدالت قضیه، دغه زمونږ قضیه ده د حکومت سره زمونږ قضیه د اسلام قضیه نه ده حکومت (د حسني مبارک حکومت) خو یو اسلامي حکومت دی، دولت یې اسلامي دولت دی.... نو زمونږ او د حکومت ترمنځ مشکل د آزادۍ مشکل دی، د بشري حقوقو او د قانون د احترام مشکل دی» [الجزیري سره مرکه].**

نو اخوانیان هغه بشري حقونه تامینول غواړي چې کفارو وضعه کړي دي په کومو کې چې لواطت، همجنسبازۍ،زنا، سود او نورو، ته هم د بشر حق نوم ورکړل شوی چې د اسلام سراسر ضد او خلاف دي، د ډیموکراسۍ تر عنوان لاندې یې مخکې وضاحت او تردید شوی دی.

## ❖ په ارجاء کې غلو (د حد نه اوښتل)!

دا چې اخوانیان د تکفیر له فتنې څخه ځان بچ کولو په پلمه د ارجاء عقیدې ته کار کوي. که څه هم له یو چا څخه کفر اکبر صادر شوی وي چې شروط د تکفیر په کې موجود او موانع یې منتفي وي، خو بیا هم د دوی په نزد د قدر وړ مسلمان بلل کېږي او له تکفیر څخه یې ډډه کوي. د مرتد تکفیر د امت د اختلاف لامل ګڼي او

سخته کرکه او نفرت ورڅخه لري چې په دې اړه يې ويناوې ستاسو مخې ته وړاندې کوو: د اخوانيانو دويم مرشد عام حسن الهضيبي يو کتاب د**"دعاة لا قضاة"** ترعنوان لاندې ليکلی، د دغه کتاب هدف دا دی چې د خپلو اتباعو ترمنځ په ارجاء کې د غلو مذهب خپور کړي، هغه په خپل کتاب کې په وضعي قوانينو په فيصله کوونکو حکومتونو د واقع کېدونکي تکفير د بطلان لپاره کوښښ کړی، حسن هضيبي دغه کوښښ په هغه مهال کې کړی چې کله ځيني اخوانيان په دې موضوعاتو کې د سخت موقف لورې ته روان ول.

**اخواني پرلماني محمد جمال حشمت وايي:** « د **"دعاة لا قضاة"** د کتاب چاپ کول د تکفير د مسئلې د رد لپاره کافي دي، اگر که د تکفيريانو په لست کې سيد قطب ولې نه وي، اخوانيانو اوس دا منهج په کلکه راټينگ کړی چې د هېچا تکفير به نه کېږي، د کتاب شلمه قاعده وايي: هيچا ته ندي جائز چې هېچا ته په گناه کافر ووايي، او دا يوه واضحه خبره ده، اوس نو د تکفير پر اساس مرموزې وژنې نشته، نه څوک د تکفير دعويدار شته، کله چې ځيني اخوانيانو د تکفير د قضيې دعوه وکړه نو د جماعت څخه وويستل شول، بيا ورسره مناقشه او بحث وکړی شو؛ څوک چې پکې پوه شو، سمې لارې ته برابر شو او د گمراهۍ نه راستانه شول نو هغه بېرته په گوند کې شامل شو او څوک چې راستون نه شو هغه په نهايي ډول د گوند څخه بهر کړی شو، هغه ته خپلو بچو هم وويل چې گوره ته خو ډېر هوښيار سړی يې او دغه ډېره واضحه مسئله ده» **[د الجزيره تلويزيون سره مرکه]**

**د اخوانيانو دريم مرشد عام عمر التلمساني وايي:** د علمانيت (سيکولريزم) او الحاد (کميونستۍ) ترمنځ ډېر واضحه توپير موجود دی، ځکه علمانيت د دين خلاف ندی بلکې ديندراه سړي ته حق ورکوي چې د خپل ځان څخه تعبير وکړي، هر چې کمونستان دي، نو د هغوی ځانگړی موقف دی چې په ديندارو خلکو پسې ورپسې

کېږي، زه د حقوقو په پوهنځي کې د وفد په نامه د علماني رئيس فؤاد سراج الدين ملګرى پاتې شوى يم هغه نېک سړى دى لمونځ او روژه اداء کوي، بله دا چې د الوفد اخوانيانو ته يې کله هم ضرر ندى رسولى **[صحيفة المستقبل].**

**د اخوانيانو ځلورم مرشد عام أبو النصر وايي:** مونږ اسلام ته د منسوبو خلکو نه هر هغه چاته لاس اوږد کوو چې د دعوت په ځانګه کې کار کوي، مګر هغه خلک نه چې حاکم او يا د بل کوم انسان تکفير کوي، ځکه مونږ په عمومي ډؤل د تکفير پر ضد يو" [النور مجله].

**اخوانيان په يوه رسمي بيان کې وايي:** اخوان المسلمين ټولو خلکو ته د خير د باروونکو په نظر ګوري او د دې اهل يې ګڼي چې امانت بار کړي او د حق په لاره استقامت ترلاسه کړي، اخوانيان خپل ځانونه د خلکو په تکفير نه مشغوله کوي...

**مونږ اخوانيانو ته همېشه دا خبره کوو:** چې مونږ د اللهﷻ دين ته رابلونکي يو؛ قاضيان نه يو، همدغه لامل دى چې مونږ هېڅ لحظه پدې کې فکر نه کوو چې خلک دې د خپلې عقيدې يا خپل دين پرته په بل څه مجبوره کړى شي(بيان للناس).

د اخوانيانو دا خبره چې په ګناه د چا تکفير نه کوو تر يو حده سمه ده ځکه په کبيره ګناه د چا تکفير جائز نه دى خو که بل لورې ته فکر وشي نو د دوى دا خبره مطلقه ده د مکفّره ګناه په اړه هم ده، که له چا څخه کفر اکبر صادر شي چې شرطونه د تکفير په کې موجود او موانع يې منتفي وي، نو بيا يې هم دوى د تکفير قائل نه دي چې دا خبره د قران او حديث خلاف، د سلفو د فهم خلاف ده او له همدې ځاى څخه د ارجاء عقيده توليد شوې. دلته يې وضاحت نه کوو که څوک تفصيل غواړي نو له العزايم اداري څخه خپور شوى کتاب **"إمعان النظر في منهج أدعياء السلفية المعاصرة صـ ١٢٩ ـ ١٣٣ "** ته دې رجوع وکړى هلته د دې مسئلې ښه تفصيل شوى دى.

## ❖ د دينونو په نيږديوالي کارکول.

اخوانيان يوازې مرتدينو ته د ورونو لقب په کارولو بسنه نه کوي بلکې دا هڅه کوي چې د ټولو دينونو والا يو بل ته رانيږدې کړي او د يو بل سره د امن او سولې په فضا کې ژوند تېر کړي که څه هم يهودي يا نصراني او يا هم د بل دين لاروی وي. دوی د حقيقي مسلمانانو د اخوت په څېر د صليبيانو او قومپاله وطنپاله مشرکينو اخوت ته هم قائل دي چې په اړه يې ويناوې په راروان ډول دي:

حسن البنّا په خپلو رسائلو کې د اخوانيانو دريځ د وطن پرسته ډلو په اړه داسې څرګند کړی دی چې د خبرې خلاصه يې په دې ډول ده، هغه ويلي دي: "کله چې وطن پرسته ډلې د وطن له خاورې سره د محبت په اساس قائمې وي نو دا يوه فطري خبره او زمونږ ديني فريضه ده "او بيا يې استدلال د بلال ﷺ په هغه شعرونو سره کړی دی چې په مدينه کې يې ويلي وو او د مکې سره يې د مينې اظهار په کې کړی و، بيا وروسته وايي: "کله چې د وطن پرستی مقصد له وطن څخه دفاع کول او له اشغال څخه ازادول وي نو دا هم زمونږ ديني فريضه ده" او بيا يې استدلال په دې قول د الله ﷻ سره کړی دی چې فرمايي:

وَلِلَّهِ ٱلعِزَّةُ وَلِرَسُولِهِۦ وَلِلمُؤمِنِين، [سورة المنافقون:٨].

**ژباړه:** عزت خاص د الله، د هغه د پيغمبر او مؤمنانو لپاره دی.

**او بيا وايي:** کله چې د وطن پرستی مقصد د خلکو په منځ کې روابط قوي کول وي نو دا هم زمونږه ديني فريضه ده او بيا يې استدلال په دې حديث سره کړی دی چې نبي عليه السلام فرمايي:**وَكُونُوا عِبَادَ اللَّهِ إِخْوَانًا. [رواه البخاري]**

**ژباړه:** شئ تاسو د الله بند ګان ورونه، ورونه. بيا يې وروسته له هغه چې له وطن پرسته ډلو سره يې د خپل نيږدې والي نقطې ثابتې کړې دي، نو داسې يې نصّاً ويلي دي: ګوره! تا اوس ولېدل چې مونږ وطن پرستی ته رابلونکو خلکو سره ملګري

یو، بلکې مونږ له هغو تېزو وطن پرسته داعیانو سره په ټولو هغه نېکو اهدافو کې ملگري یو چې ولس او سیمې ته خیر راوړي، او ورسره دا دې هم وکتل چې دغه د وطن پرستۍ خلاص دعوت د اسلامي تعلیماتو له اجزاو څخه خارج نه دی.**(رسائل حسن البنا).**

همدا راز حسن البنا د هغه امریکایي او برطانوي مشترک کمیسیون مخې ته چې د «فلسطین د قضیې» د څېړنې لپاره په مصر کې را جمع شوی و؛ په یوه بیان کې ویلي وو: «د یهودو سره زمونږ دښمني کومه دیني بنه نه لري، ځکه قرآن کریم د هغوی میلمه کولو او دوستۍ ته بلنه کوي، اسلام مخکې لدې چې یو قومي شریعت شي؛ یو بشري شریعت دی اسلام د یهودو صفت کړی او زمونږ او د هغوی ترمنځ یې تړون گرځولی دی...

کله چې قرآن کریم د یهودو مسئله څېړي نو د اقتصادي او قانوني پلو څخه یې څېري **[الإخوان المسلمون أحداث صنعت التاریخ محمود عبد الحلیم].**

**بل ځای حسن البنا وایي:** د اسلام حنیف دین د هېڅ دین سره جگړه نه لري او نه کومه عقېده خیتې ته اچوي. بل ځای د مصر د نصاراؤ (مسیحیانو) په اړه وایي: زمونږ مسیحي ورونه» **[مواقف في الدعوة والتربیة عباس السیسي].**

کله چې حسن البنا د رسول الله ﷺ د مولد مراسم د قبطي نصاراو په خوا کې ولمانځل نو ویې ویل: «مونږ د رسول الله ﷺ د پیدایښت یاداښت تازه کوو او دا د ټولو خلکو حق دی- که هغه مسلمانان دي که غیر مسلمانان- چې دغه مبارکه ورځ ولمانځي، ځکه زمونږ پېغمبر ﷺ یواځې مسلمانانوته نه و راغلی» **[في قافلة الإخوان المسلمین، عباس السیسي]**

اخوانیانو یو رسمي بیان صادر کړ چې په هغې کې داسې راغلي وو: «په مصر او عربي نړۍ کې زمونږ د مسیحي ورونو په اړه موقف ډېر واضحه، پخوانی او هر

چا ته معلوم دی؛ د هغوی لپاره هغه حقوق دي چې کوم زمونږ لپاره دي او په هغوی هغه واجبات دي چې کوم په مونږ دي، دوی زمونږ سره په وطن کې شريکان دي او په اوږد وطني مقاومت کې زمونږ ورونه دي، دوی د وطنيت ټول حقوق لري که مادي وي که معنوي، که مدني وي او که سياسي» **[بيان للناس].**

همدا راز د دينونو په نېږدېوالي کې اخوانيان له دې باطلې قاعدې څخه هم ډېره ګټه اخلي چې په کې راغلي دي :

**"نتعاون فيما اتفقنا عليه، ويعذر بعضنا بعضا فيما اختلفنا فيه."**

**ژباړه:** مونږ به په اتفاقي مسائلو کې له يو بل سره مرسته کوو او په اختلافي مسائلو کې به يو بل معذور ګڼو. نو له دې وجې خو د دوی په عبارتونو کې دا قاعده ډېره تکرار شوې. دوی له هېڅا سره اختلاف نه لري که هر دين او مذهب والا وي بلکې همېش په دې هڅه کې وي چې د غير دينو سره هم مثبتې اړيکې ولري او دا د خپل ځان لپاره يو غټ وياړ ګڼي. خو بل لورې ته اسلام له کفارو څخه د بېزارۍ اعلان کړی، د اسلام نه رواړلو په صورت کې د جزيې يا هم د جهاد اعلان کړی او له اسلام پرته نور دينونه يې منسوخ کړي او باطل يې ګرځولي.

د اسلام سره يې ورله د نېږدېوالي هېڅ لار نه ده پرېښې بلکې ځای په ځای يې د يهود، نصاراؤ او مشرکينو سره په مخالفت امر کړی چې دا په دې ښکاره دليل دی چې اسلام له نورو دينونو سره په هېڅ صورت کې نه جمعه کېږي او هېڅ د نېږدېوالي امکان نه لري. خو اخوانيان بيا هم د غير دينو سره د ورورۍ او نېږدېوالي هڅه کوي چې دا د دوی په انحراف ښکاره دليل دی.

## ❖ د روافضو سره کلکه دوستانه!

اخوانیان چې ځانونه د صحابه ؤ مدافعین او د اسلام علمبرداران ګڼي خو بل لورې ته د صحابه ؤ له دښمنانو، روافضو سره دوستانه اړیکې پالي هغوی ته د ورونو خطاب کوي او د عزت القاب ورته کاروي او د لاس آله یې ګرځېدلي چې په ډېرو ځایونو کې د هغوی د مفادو لپاره مبارزه پر مخ وړي او د رافضیت له محوره ځانونه قربانوي، د رافضي محور لپاره دغه بې ساري قربانیانې د دوی د مشرانو د هغو ویناؤ نتیجه ده چې څو لسیزې وړاندې یې د روافضو په حق کې کړې دي چې ځیني یې په دې ډؤل دي:

د اخوانیانو دریم رئیس«**مرشد العام**» عمر التلمساني وایي: «د مسلمانانو د خبرې په یووالي د حسن البنا دومره حرص و چې هغه غوښتل په یوه کانفرانس کې ټول اسلامي مذهبونه سره را ټول کړي، امید دی چې اللهﷻ دوی ته هدایت وکړي او یو ځای شي، چې په دې سره به د یو بل تکفیر نه کوي، ځکه چې زمونږ قرآن یو دین یو رسول ﷺ او معبود یو دی او د همدغه غرض په خاطر حسن البنا فضلية الشیخ محمد القمي چې د شیعه ګانو یو ستر عالم او مشر دی د اخوانیانو په عمومي مرکز کې میلمه کړی و« **[الملهم الموهوب]**.

**بل ځای وایي:** «په څلویښتمې لسیزې کې زما ښه په یاد دي چې د شیعه ګانو یو مشر السید القمي به د اخوانیانو مرکزي دفتر ته راته هغه وخت کې شهید امام حسن البنا په دې کار کاوه چې اسلامي مذهبونه سره یوځای کړي، ترڅو د اسلام دښمنان له دغې لارې د مسلمانانو وحدت ته نقصان ونه رسوي، مونږ یوه ورځ د هغه څخه د شیعه کانو او سنیانو تر منځ د اختلاف د کچې په اړه وپوښتل نو هغه مونږ د دې ډؤل مسائلو په اړه د بحث څخه منع کړو، ځکه مسلمان ته نه ښايي چې په داسې مسائلو ځان مشغوله کړي، مسلمانان په خپل منځ کې په یو بل ټاپې لګوي

او دښمنان غواړي چې د مسلمانانو ترمنځ اور نور هم گرم شي، مونږ هغه محترم ته وويل مونږ د تعصب يا د مسلمانانو ترمنځ د اختلاف د زياتولو لپاره پوښتنه نه کوو، بلکې د علم د زياتېدو لپاره يې کوو، ځکه د شيعه گانو او اهل سنت ترمنځ اختلاف خو په ډېرو کتابونو کې ذکر دی او مونږ سره دومره وخت نشته چې په دغو مراجعو کې پلټنه وکړو، نوهغه راته وويل: پدې خبره ځان پوه کړئ چې شيعه گان او سنيان دواړه مسلمانان دي، د لا اله الا الله محمد رسول الله کلمه يې سره يو ځای کوي او همدغه د عقيدې بنياد دی چې شيعه گان او سنيان پکې سره په ډيره صفايئ شريک دي، هر چې د دوی ترمنځ اختلاف دی نو هغه په داسې خبرو کې دی چې د نېږدېکت امکان پکې موجود دی» [ذکريات لا مذکرات]. تلمساني بيا وايي: د اخوانيانو د گوند د شيعه گانو د مشرانو سره همېشه اړيکه ژوندۍ وه لکه د آيت الله الکاشاني سره يې اړيکه نېوله، نواب صفوي يې په مصر کې ميلمه کړ... دغه ټول کارونه اخوانيانو پدې خاطر نه کول چې شيعه گان له خپل مذهب څخه واړوي، بلکې د يو بل عظيم مقصد لپاره چې اخوانيان ورته خپل اسلام اړ کړي وو او هغه دا چې اخوانيان بايد د اسلامي مذاهبو ترمنځ د نېږدې کېدو لپاره د خپل ممکن حده پورې کوښښ وکړي»[ شيعة وسنة].

دا د اخوانيانو دين دی چې د اصلي کافرو تر څنگ له روافضو مجوسيانو سره هم دوستانه اړيکو ته ژمن دي او هغوی ورته د اسلامي امت مشران او شېخان ښکاري او د اسلامي امت سره يې اختلاف هسې فرعي اختلاف گڼي خو بل لورې ته يې د اهل السنة والجماعة علماوو فتواوې هېرې دي چې د روافضو په اړه يې صادرې کړي، د روافصو بواح کفر او شرک يې هېر دی چې په هر مجلس کې تکراروي، د نبيعليه‌السلام د عزت لوټونکي،له يو څو کسانو پرته د جمله صحابه ؤ تکفير کوونکي او په هغوی لعنت ويونکي، د تاريخ په اوږدو کې له مسلمانانو سره لوی خيانت

کوونکي، قران کریم ناقص ګڼونکي، د ګڼو آلهه ؤ عبادت کوونکي، د حلول، تناسخ او باطني عقایدو لرونکي، او داسې نور شرکي عقاید چې روافض یې لري او د امت علماوو ذکر کړي دي دلته مونږ یوازې په اشارې اکتفاء کوو . که غواړئ چې د روافضو عقاید په تفصیلي توګه معلوم کړئ نو له العزائم اداري څخه خپاره شوي کتابونه تعقیب کړئ په ځانګړي توګه **"السيف القدسي في رد أباطيل المقدسي صـ٦٥"** ته رجوع وکړئ هلته د شیعه ګانو د ډلو تفصیل او حکم ذکر شوی دی.

**الغرض:** اخوانیان د دې هر څه باوجود د روافضو اسلام او ایمان ته قائل دي، د هغوی نیکی او شیخی ته قائل دي او د روافضو او مسلمانانو تر منځ د نیږدیوالي په هڅه کې دي، چې دا مونږ ته د دوی د عقیدې فساد او انحراف په ګوته کوي.

## ❖ په جهاد پلوه ډلو د اخوانیزم اثر!

د اخوانیزم اثر یوازې تر یو څو اشخاصو رابند نشو بلکې د جهاد په نوم راپورته شوې ځیني سلفي او غیر سلفي،عربي او عجمي ډلې یې هم تر اغیزې لاندې راغلې تر دې چې د اخوانیزم منهج یې د خپلې مبارزې لپاره یو غوره منهج وبالو او د دې زمانې د جهاد نیالګی او نوښت یې وباله چې په راروانو ټکو کې به د دوی ځیني ویناوې راوړو: ظواهري د حسن البنا په ستاینه کې په خپل یو بیان کې وایي: شیخ حسن البنا رحمه الله د اسلامي تحریک یوه ځلانده نمونه ده هغه ته الله عز وجل شهادت ور نصیب کړ، مونږ د الله عز وجل نه سوال کوو چې د نور ټول نېک عمل سره یې ترې قبول کړي، الله عز وجل پوهیږي چې زه په زړه کې د هغه سره څومره مینه او ورته احترام لرم... همدا ډول شیخ حسن البنا رحمه الله د خلافت څخه وروسته په اوسنو اسلامي حرکتونو کې د جهاد نیالګی کینوه **[الحصاد المر]**. بل ځای وایي: زه دغه کار هدیه کوم... امام او د اسلامي پاڅون لامل حسن البنا ته، چا چې ځوانان د لوبو او عبثیاتو څخه د جهاد میدانونوته راوویستل [شذى القرنفلات]. د ابو مصعب السوري

ستائنه هم په دې اړه شته چې دا هم د جهاد له دعویدارانو څخه تېر شوی او هر چې حزب الأمة د حاکم المطیري گوند دی او د سروریه ؤ گوند دی نو هغوی خو ټول د اخوانیانو په منهج روان شوي دي چې له دې لارې د اخوانیت څه برخې سلفیت ته هم ورداخلې شوي چې په دې توگه یې په القاعده ؤ هم اثر کړی نو له دې وجې دا به څه ناشنا خبره نه وي چې د القاعده تنظیم غړي د اخوانیانو ستائنه وکړي او د هغوی له منهج څخه دفاع وکړي.

## خلاصة البحث:

دا د اخوانېزم په اړه لنډ معلومات و چې د لوستونکو مخې ته مو وړاندې کړ، په دې سره زمونږ غرض د دوی باطله څېره بربنډول وو دې لپاره چې مسلمانان د دوی له دعوت څخه متاثره نشي او د دوی د تنظیم په غړو یا هم د دوی له افکارو څخه متاثره اشخاصو ته د موحدینو یا هم د مجاهدینو په نظر ونه گوري تاسو د دوی حال وکتو چې دوی کفر ته له اسلام څخه ډېر نېږدې دي، بلکې په ډېرو مواردو کې یې کفر په اسلام راجح دی، دوی د اسلام په ځای ډیموکراسي غوره کړې، د مسلمانانو پر ځای یې د کفارو او مشرکینو موالات غوره کړي، د اسلامي نظام پر ځای یې پارلماني شرکي نظام غوره کړی، د شریعت د دفاع پر ځای یې د طواغیتو دفاع غوره کړې، د اهل السنة والجماعة عقیدې پر ځای یې غالي ارجاء غوره کړې، د حقیقي جهاد پر ځای یې تش وهمیات، خیالات او بې عمله شعارونه غوره کړي، د طواغیتو سره یې په قومي او وطني ایتلافونو کې برخه اخیستل هم له چا پټ نه دي او داسې نور ...

**الغرض:** اخوانېزم او ډیموکراسي د یوې سیکې دوه مخونه دي او د یو بل لازم ملزوم دي چې له دوی څخه د توحید عقیدې او د شرعي جهاد هېڅ طمعه نشي کېدای.

# جهاد او د بين الملل قوانينو ته ژمنتيا!

ځيني د جهاد دعويدارې ډلې هر وخت نړيوالو ته دا پيغام ورکوي چې مونږ د چا په داخلي چارو کې لاسوهونه نه کوو، مونږ نړيوال امنيت ته خطر نه يو، زمونږ د جنګ دائره محدوده ده، مونږ بشري حقونو ته درناوی لرو، مونږ بنسټيزو ازاديو ته درناوی لرو، مونږ بين الملل قوانينو ته ژمن يو، او داسې نور شعارونه کاروي د غه شعارونه چې دوی کاروي د دې تر شاه څه فلسفه ده؟ نو دلته د دغې فلسفې په اړه لږ بحث کوو بيا به مونږ ته دا خبره ښه روښانه شي چې دوی د کوم اصل په اساس دا خبره کوي او ايا اسلام دوی ته دا اجازه ورکوي چې داسې شعارونه وکاروي او عملي جامه ورته واغوندي او که نه؟ او ايا د دغو شعارونو او ژمنتياو سره سره د دوی جنګ يا مبارزه شرعي جهاد بلل کېږي او که نا د طاغوت په لاره کې جنګ بلل کېږي؟

**نو د دې په وضاحت کې وايو:** د دغو شعارونو تر شاه د بين الملل منشور دی چې د هغې په مادو کې د نړيوال امنيت د ساتنې ټينګار شوی، د بشري حقونو د رعايت ټينګار شوی، د بنسټيزو ازاديو ټينګار شوی، د جغرافيوي پولو د ساتنې او د بل هېواد په داخلي امورو کې د نه لاسوهنې ټينګار شوی، د ښه ګاونډيتوب او د حقونو د مساوات ټينګار شوی، او داسې نور اصول لري چې ځيني يې سره د لنډ تحليل دلته راوړو ان شاء الله:

**د منشور په سريزه کې وايي:** موږ د ټولو انسانانو؛ ښځو، نارينه وو او ماشومانو پر اساسي حقونو، روغتيا، کرامت او د دوی ترمنځ پر حقوقي برابرۍ ټينګار کوو.

نو دلته يې د انسانانو تر منځ د حقونو او مساوات معيار انسانيت ګرځولی، سړو او ښځو تر منځ فرقونه ختم شوي دي، د کافر او مسلمان تر منځ فرقونه ختم شوي دي، حال دا چې په اسلام کې د کافر او مؤمن تر منځ توپير راغلی د فاسق، فاجر

او مؤمن تر منځ توپير راغلی، د عالم او جاهل تر منځ توپير راغلی، د ښځې او سړي تر منځ په حقونو کې توپير راغلی چې دا خبرې د دين له ضروورياتو څخه ثابتې دي خو د دغه کفري منشور په منلو سره دا ټول توپيرونه له منځه ځي او د مساوات کفري عقيده رامنځته کېږي.

**بيا وړپسې وايي:** موږ په ټينګه د داسې يو حالت غوښتونکي يو چې د هغه له مخې نړيوال تړونونه او قوانين رعايت شي او هغه څه چې په دې قوانينو کې راغلي محترم وګڼل شي، ترڅو په دې ډول د ټولو وګړو ترمنځ عدالت ټينګ شي. نو په دېکې د نړيوالو قوانينو او تړو رعايت لازم کړی او د دغو قوانينو او تړو احترام يې لازم کړی که څه هم دغه قوانين او تړې يې د اسلام سره په ټکر کې هم وي چې دا لوی کفر دی ځکه چې د الله د قانون په مقابل کې نور وضعه کړي قوانين منل، د الله نه سيوا د بل چا تحليل تحريم منل لازميږي چې دا د ربوبيت په معنا دی، د اللهﷻ د **"حَکَم حاکم او تحکيم "**صفات بل چا ته ورکول لازميږي چې دا د اللهﷻ سره په اسماؤ صفاتو کې بل څوک برخه دار جوړول دي.

بيا وايي: موږ د بشپړې ازادۍ تر سيورې لاندې د ټولنيز پرمختګ او د ښه ژوند د رامنځته کولو په موخه خپله ټينګه اراده څرګندوو.

دلته يې بشپړه آزادي ويلې ده چې د دې مقصد د هر ډول ديني قيوداتو څخه آزادي ده چې يو دين دې هم ستا لپاره د دې لامل نشي چې د ټولنيز هغه پرمختګ څخه چې دوی يې غواړي وروسته پاتې شي چې د دغه پرمختګ ډېری برخه له فسق، فجور، کفر او شرک څخه راڅرخي. نو په دې سره يې پوره بې دينی، فحاشی او عريانی ته آزادي ورکړې، د الله نه انکار ته يې آزادي ورکړې او د اسلام له ټولو اصولو څخه يې انکار ته آزادي ورکړې. چې د دې ډول ازاديو منل لوی کفر او د اللهﷻ د احکامو تکذيب دی.

بيا وړپسې وايي: د دغو موخو او هيلو پر اساس غواړو چې د ښه نيت او ښه ګاونډيتوب له مخې له يو بل سره په سوله او امن کې ژوند وکړو او د نړيوالې سولې او امنيت د ټينګښت په موخه خپلې هڅې او قوت سره يو کړو.

نو په دې کې يې د ذکر شويو غير مشروع موخو ته د رسېدو لپاره د ښه نيت او ښه ګاونډيتوب ټينګار کړی که څه هم حربي کافر هم وي خو نيت به ورته صفا ساتې په زړه کې به ورسره کينه نه ساتې او نه به هم د هغوی په داخلي چارو کې لاسوهنه کوې، هغوی به خپل کفر کې بيخي ازاد وي او له تا څخه به ورته هېڅ خطر متوجې نه وي، او د نړيوالې سولې د ټېنګښت لپاره د کفارو سره په ټلواله کې داخلېدل هم په کې ياد شوي. نړيواله سوله چې عبارت ده له يهودي، نصراني، مشرک، رافضي او د ټولې نړۍ د حربي کفارو له امنيت څخه. د دې تأمين لپاره د کفارو سره لاس يو کول په کې ياد شوي دي. چې دا دواړه کارونه لوی کفر دی ځکه په دې سره خو د ولاء براء عقيده له منځه ځي چې د ايمان اساسي رکن دی او بل د کفارو سره ښکاره تولّي او تحالف دی چې دا هم ښکاره کفر دی او هم د هغوی سره په غير مشروع موخو کې همکاري ده.

**د لومړي څپرکي په اوله ماده کې وايي:**

**د نړيوالې سولې او امنيت د ټينګښت په موخه د ټولو ګډو اغېزناکو اقداماتو په کار اچول.**

نو دلته يې د نړۍ د ټولو حربي کفارو د سولې او امنيت د ټينګښت لپاره د ګډو اغېزناکو اقداماتو يادونه کړې چې د دغه کفارو سره به په شريکه سوله ساتي که څه هم د اسلامي نظام مخنيوی هم په کې وي د جهاد مخنيوی د شرعي حدوداتو مخنيوی او د شريعت د قيام مخنيوی هم په کې وي چې دا ټول د نړيوالو کفارو سولې او امنيت ته خطر ګڼل کېږي. نړيواله کفري سوله د اسلامي سولې سراسر

ضد ده، د کفارو سوله مسلمانانو ته د بې امنيتی په معنا ده، اسلام له مستأمن، ذمي او معاهد کافر څخه پرته حربي کافر ته د سولې او امنيت ډاډ نه ورکوي خو د بين الملل په منشور کې سوله د دې په عکس ده. نو د دوی دغه سولې او امنيت ټينګښت ته کار کول او ژمن ورته پاتې کېدل لوی کفر دی او د هغوی سره په کفر کې ښکاره مرسته ده چې اسلام يې اجازه نه ورکوي بلکې اسلام د حربي کافر سره د جهاد امر کړی دی تر دې چې اسلام راوړي يا هم جزيي ته غاړه کېږدي.

بيا وايي: **د ولسونو خپلواکی او مساوي حقونو ته درناوی، د ولسونو ترمنځ د دوستانه اړيکو ټينګول.**

دلته يې د مطلق ولسونو تر منځ د مساوات په اصل او هم د موالات په اصل ټينګار کړی که څه هم دغه ولسونه په دينونو، عقيدو او مذاهبو کې سره بېل هم وي، اسلام ته په کې اعتبار نشته، او هم يې د ولسونو خپلواکی په اړه خبره کړې چې د دې معنا دا ده چې ولسونه به د هېچا د واک لاندې نه وي که څه هم د الله واک هم وي په دوی به يې څه اغېزه نه وي بلکې دوی به خپلواک وی، د ځانه به هر ډؤل تحليل تحريم کولی شي. چې دا هم لوی کفر دی. ځکه د ولسونو تر منځ په ايمان او کفر سره توپير لازم دی چې دا توپير اللهﷻ کړی دی کافران يې د کفر په لفظ سره مخاطب کړي دي او مسلمانان يې د ايمان او اسلام په الفاظو مخاطب کړي دي او دا دواړه ډلې يې د دنيا او د اخرت په احکامو کې له يوې بلې څخه جلا کړي دي او هم يې حاکميت خپل ځان ته خاص کړی دی فرمايلي دي:

إِنِ الْحُكْمُ إِلَّا لِلَّهِ، حاکم او واکدار يوازې الله دی، انسان ته يې هېڅ واک نه دی ورکړی. فرمايلي يي دي:

وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ وَلَا مُؤْمِنَةٍ إِذَا قَضَى اللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَمْرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ الْخِيَرَةُ مِنْ أَمْرِهِمْ- وَمَن يَعْصِ اللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدْ ضَلَّ ضَلَٰلًا مُّبِينًا[سُورَةُ الأحزَاب : ٣٦]

**ژباړه:** هېڅ يو مؤمن او هېڅ يوه مؤمنه دا حق نه لري چې کله الله او د هغه رسول ﷺ د کومې معاملې فېصله وکړي او بيا **(د الله او د هغه د رسول په خلاف)** هغه پخپله د خپلې هغې معاملې د فېصله کولو اختيار ولري. او څوک چې له الله او د هغه له رسول څخه سرغړاوی وکړي، نو هغه په ښکاره ګمراهۍ کې لوېدلی دی.

خو د دې په عکس د بين الملل په منشور کې انسان خپلواک دی چې دا په دغه ايتونه ښکاره کفر دی.

**په دويمه ماده کې وايي: ټول غړي د ملګرو ملتونو له هغو کړنو سره چې په دې منشور کې راغلي، هر ډول مرسته کوي او غړي دولتونه به له هغو هېوادونو سره مرسته نه کوي، کوم چې د ملګرو ملتونو له خوا پرې بنديزونه لګېدلي او قهري تدابير پرې پلي شوي وي.**

نو د ملګرو ملتونو سره يې په هغه کړنو کې مرسته لازم کړې چې په دې منشور کې راغلي دي که څه هم دغه کړنې د الهي منشور خلاف هم وي، لکه د مسلمانانو په خلاف مرسته، د اسلامي نظام په مخنيوي کې مرسته، د مسلمانانو په تعذيب او ټول وژنه کې مرسته، د جنسيت بدلولو قانون پلي کولو کې مرسته، د همجنسبازۍ او نورو ګنو کفري قوانينو پلي کولو کې مرسته شامل دي او هم د ملګرو ملتونو لپاره موالات معادات په کې شامل دي. چې د دې کفر هم واضحه دی ځکه په کفري کړنو کې مرسته کفر دی چې دا کفر د بين الملل له خوا په غړو هېوادونو فرض شوی دی،او ټول غړي يې د دغه کفر مرتکبين ګرځېدلي دي چې بېلګې يې واضحه دي دلته يې ذکر کول اړين نه ګڼو.

**په دويم څپرکي کې وايي:**

**ټول هغه هېوادونه چې سولې ته ژمن وي او د منشور مقررات ومني، کولی شي چې د ملګرو ملتونو په سازمان کې غړيتوب واخلي.**

دلته يې د سازمان د غړيتوب لپاره د منشور مقررات منل شرط کړي دي که دغه مقررات هر څومره د اسلام خلاف هم وي چې حلال په کې حرام شوي وي او حرام په کې حلال شوي وي په غړو هېوادونو يې منل لازم دي، چې دا په دې معنا دی چې د قران په خلاف بل کتاب به منې چې هغه د ملگرو ملتونو منشور دی. نو کومو هېوادونو چې د ملگرو ملتونو غړيتوب اخستی يا يې د اخستلو په هڅه کې دي او د ملگرو ملتونو قوانينو ته د ژمنتيا ټينگار کوي؛ د هغوی حکام په دې مادې سره کافر شوي دي او هغه گوندونه چې په دې اقرار کوي چې مونږ د ملگرو ملتونو منشور منلی او ورته ژمن يو هم په دې مادې سره کافر شوي دي ځکه دوی د الله د دين او مقرراتو نه سېوا بل دين منلی، ډېری کفري مقررات يې منلي هغه چې د دوی منشور پرې گواه دی.

**په دريم څپرکي کې د واکونو په باب کې ليکي:**

عمومي اسامبلي کولی شي چې د دې منشور په چوکاټ کې ټول مسايل او همدارنگه د سازمان په نورو څانگو پورې اړوند مسايل تر بحث او غور لاندې ونيسي.

دلته يې د مسائلو د حل واک عمومي اسامبلی ته ورکړی دی چې د دې منشور په چوکاټ کې حل کړي، عمومي اسامبلي چې د يهودو، نصارا، مجوس او مرتدينو نه تشکېل شوې، دوی به په نړی مشري کوي او راپيدا شوي مسائل به د وضعه کړي کفري منشور له مخې حل کوي. نو د فېصلو کتاب يې د ملگرو ملتونو وضعه کړی منشور دی، قران نه دی، چې همدې ته په طاغوت فيصله ويل کيږي ځکه د طاغوت تعريف چې علامه ابن القيم رحمه الله کړی هغه پرې پوره صادقيږي هغه وايي:

الطاغوت كل ماتجاوز به العبد حده من معبود أو متبوع أو مطاع فطاغوت كل قوم من يتحاكمون إليه غير الله ورسوله أو يعبدونه من دون الله أو يتبعونه على غير بصيرة من الله أو يطيعونه فيما لا يعلمون أنه طاعة لله، (إعلام الموقعين المجلد

الأول ص ٨٥) **ژباړه:** طاغوت هر هغه څه ته وايي چې بنده په کې د خپل مشروع حد نه تجاوز وکړي که معبود وي **(چې عبادت يې کيږي)** که متبوع وي **(چې تابعداري يې کيږي)** که مطاع وي (چې هره خبره يې منل کيږي) نو د هر قوم طاغوت هغه څوک دی چې دوی ورته د الله او د هغه د رسول نه سوا فيصلې وړي يا يې د الله نه سوا بندگي کوي يا يې پرته له ديني پوهې او دليله( ړنده )تابعداري کوي يا يې په هغه څه کې خبره مني چې په دې نه پوهيږي چې دا د الله تابعداري ده. اللهﷻ طاغوت ته د فيصلې په ترديد کې فرمايلي دي:

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ ءَامَنُوا بِمَآ أُنزِلَ إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓا إِلَى الطَّٰغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوٓا أَن يَكْفُرُوا بِهِۦ وَيُرِيدُ الشَّيْطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمْ ضَلَٰلًا بَعِيدًا [سُورَةُ النِّسَاء: ٦٠] - ژباړه: اې پيغمبرﷺ! ايا تا هغو خلکو ته نه دي کتلي چې دعوه کوي چې: موږ پر هغه کتاب چې تا ته راغلی دی او پر هغو کتابونو چې له تا څخه مخکې نازل شوي ول ايمان راوړيدی؟ خو غواړي چې خپلې چارې د فيصلې لپاره د طاغوت(شيطان) لوري ته وړاندې کړي. حال دا دی چې هغو ته له طاغوت څخه د منکريدو حُکم شوی ؤ.شيطان غواړي هغوی وغولوي او د سمې لارې څخه يې ډېر لرې وباسي.

همداسې دوی نورې ډېری طاغوتي محکمې هم لري چې وروسته راځي.

**په اتلسمه ماده کې ليکي:**

د نورو مسايلو په اړه پريکړې هم د رايو په اکثريت ترسره کيږي.

نو پريکړې يې د رايو په اکثريت بنا دي که څه هم د شريعت خلاف هم وي حق ته په کې اعتبار نشته. خو په اسلام کې حق ته اعتبار دی اکثريت ته اعتبار نشته، د قران په ډېرو ايتونو کې د اکثريت ترديد شوی دی کله چې په باطله وي. اللهﷻ فرمايلي دي:

لَقَدْ جِئْنَٰكُم بِالْحَقِّ وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَكُمْ لِلْحَقِّ كَٰرِهُونَ [سُورَةُ الزّخرُف : ۷۸]

**ژباړه:** یقیناً موږ تاسو ته حق راوړی دی خو ډېری په تاسو کې حق بد ګڼي. او داسې نور ایتونه په دې معنا شته.

**په پنځه ویشتمه ماده کې لیکي:**

**د ملګرو ملتونو غړي ژمنه کوي چې د دې منشور له مخې د امنیت شورا پرېکړې اجرا او مني.**

امنیت شورا چې یو لوی طاغوت دی او په دې زمانه کې په ټوله نړۍ ځان واکمن ګڼي هره فېصله چې صادره کړي په غړو هېوادونو یې منل او اجرا کول لازم دي که د یو شي د تحلیل فېصله یې صادره کړه نو هغه شی به ورسره ټول غړي هېوادونه حلال ګڼي او همداسې یې د تحریم فېصله هم ده نو له دې وجې خو یې ځینې اسلحې په کمزورو هېوادونو حرامې کړي دي دا نوم یې ورته ورکړی**"الأسلحة المحرمة دولیّاً "** په نړیواله سطحه حرام شوې یا ممنوعه اسلحه، دغه حرمت د الله له طرفه نه دی بلکې دا د همدې امنیت شورا له طرفه دی نو په غړو هېوادونو یې ټول تحریمات منل لازم دي خو په شریعت کې پر انسانانو د الله او د هغه د رسول ﷺ فېصلې منل او اجرا کول لازم دي الله ﷻ فرمایي:

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوٓا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ- فَإِن تَنَٰزَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُولِ إِن كُنتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْءَاخِرِ- ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا [سُورَةُ النِّسَاء: ۵۹]- **ژباړه:** اې مؤمنانو! د الله، رسول او هغو کسانو اطاعت وکړئ چې ستاسې څخه د امر خاوندان وي، بیا که ستاسې تر منځ په کومه چاره کې شخړه پیښه شي، نو هغه د الله او رسول لوري ته محوله (وړاندې) کړئ. که تاسې په رښتیا سره پر الله او د اخرت په ورځ ایمان لرئ، همدا د کار یوه سمه طریقه ده او د عاقبت په اعتبار هم غوره ده.

خو د ملګرو ملتونو منشور د دې ایت په عکس غړي هېوادونه د امنیت شورا پرېکړو منلو او اجرا کولو ته رابلي نو له دې وجې دا یو لوی طاغوت دی چې پرېکړې منل یې لوی کفر دی.

**په یوڅلویښتمه ماده کې راځي:**

**امنیت شورا کولی شي چې د خپلو پرېکړو د اجرا په موخه د وسلوال ځواک له کارونې پرته داسې لارې چارې وکاروي چې دغه شورا یې لازمه وګڼي. شورا کولی شي د ملګرو ملتونو له ټولو غړو څخه غوښتنه وکړي چې له سرغړوونکو هېوادونو سره ډیپلوماټیکې، اقتصادي، ټرانسپورټي، سمندري، هوایي، پوستي او مخابراتي اړیکې پرې کړي.**

یعنې غړي هېوادونه به د امنیت شورا دښمن هېواد ته د دښمن په نظر ګوري او ټولې د دښمنۍ لازمې چارې به اجرا کوي چې د مقابل لورې سره هر ډول اړیکې پرېکول، او په مقابل کې یې د بین الملل سره هر اړخیزه مرستې شاملې دي لکه فوځي، ځمکنۍ او هوایي مرستې، او دوست هېواد ته به یې د دوست په نظر ګوري او ټولې د دوستۍ لازمې چارې به اجرا کوي چې په اوس وخت کې د امنیت شورا دوستان او دښمنان په ډاګه دي هغه څوک چې د الله د قانون په خلاف د دوی منشور ومني د دوی دوست بلل کېږي او هغه څوک چې د دوی د منشور په خلاف د الله قانون ومني د دوی دښمن بلل کېږي ، نو موالات معادات په کې د امنیت شورا لپاره دي د الله لپاره نه دي، حال دا چې موالات معادات به یوازې د الله لپاره کېږي د الله د دوستانو سره به مینه او مرسته کېږي او د الله د دښمنانو سره به بغض او دښمني کېږي مونږ ته الله تعالی د ولاء براء همدغه معیار ښودلی دی د بین الملل کفري منشور او یا هم ځمکني قانون سازان، معبودان او طواغیت یې راته نه دي ښودلي.

**نهه څلوېښتمه ماده کې ليکي:**

**د ملګرو ملتونو غړي به د امنيت شورا له خوا د نېول شويو پرېکړو د اجرا لپاره له يو بل سره په ګډه مرسته کوي.** يعني د امنيت شورا پرېکړې که څه هم د اسلام خلاف وي غړي هېوادونه به يې پلې کوي او له يو بل سره به په دې باب کې مرسته کوي، حال دا چې الله عز وجل مونږ ته د مرستو لپاره يو جامع اصل ټاکلی دی فرمايلي دي: وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوٰى- وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوٰنِ- وَاتَّقُوا اللَّهَ- إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ [سُورَةُ المَائدة: ٢]. **ژباړه:** له يو بل سره د نېکۍ او تقوا په کارونو کې مرسته کوئ او د ګناه او زياتي په کارونو کې مرسته مکوئ او له اللهﷻ څخه وويرېږئ يقيناً اللهﷻ سختې سزا والا دی.

نو ايا د امنيت شورا پرېکړې د تقوا او د نېکۍ دي او که د الله د نافرمانۍ او سرغړونې دي؟ نو دا خو ښکاره خبره ده چې د هغوی پرېکړې هېڅکله د الله د پرېکړو موافق نه دي چې د تقوا او نېکۍ پرېکړې وبلل شي بلکې د کفر، شرک، فسق، ظلم او تجاوز پرېکړې دي نو مرسته ورسره حرامه او د کفر لامل ده ځکه چې يو خو د کفارو ټلواله قوي کول دي بل د دوی ډېری پرېکړې د اسلام او مسلمانانو په ضد وي چې په دې کې ورسره مرسته کول کفر دی.

**دوه پنځوسمه ماده کې وايي:**

**٢- د ملګرو ملتونو غړي چې دا ډول بنسټونه او سازمانونه جوړوي، خپلې سيمه ييزې شخړې لومړی بايد د همدې بنسټونو له لارې حل کړي، که چېرې دغو سازمانونو مسله حل نه کړه، نو بايد امنيت شورا ته وړاندې شي.**

نو دلته يې په واضحه توګه ليکلي دي چې د اختلاف په وخت مسئله د امنيت شورا ته راجع کول چې دا يوه طاغوتي شورا ده د اصلي کفارو نه تشکيل شوې ده، دائمي غړي يې روس، چين، امريکا، فرانسه او برطانيا دي. حال دا چې اللهﷻ فرمايي:

فَإِن تَنَٰزَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ إِلَى اللَّهِ وَالرَّسُول، [سُورَةُ النِّسَاء : ٥٩]

**ژباړه:** که چېرې ستاسې تر منځ کومه شخړه پېښه شي؛ نو هغه د الله او رسول لورې ته محوله (وړاندې) کړئ.

خو دوی د الله د کتاب په ځای د امنيت شورا ته فيصلې وړاندې کوي چې همدا د طاغوت لورې ته فيصله وړل دي هغه چې صريح کفر دی او مخکې يې په اړه د **سورت نساء ٦٠** شماره ايت ذکر شوی دی.

**پنځه پنځوسمه ماده کې وايي:**

**ج: له ژبني، مذهبي او نژادي توپير پرته د بشر حقونو او اساسي ازاديو ته درناوی.**

نو په دې ماده کې يې ټول انسانان په حقونو کې مساوي کړي دي دين او مذهب ته يې په کې هېڅ اعتبار نه دی ورکړی او نه هم د ښځې او سړي تر منځ شرعي فرقونو ته اعتبار ورکړل شوی چې په دې اړه مخکې وضاحت شوی دی، او هر چې اساسي ازادی دي نو دا د دوی په اصطلاح کې د بيان آزادي، د عقيدې آزادي، شخصي آزادي او نورو هغو ازاديو ته ويل کېږي چې د دوی په منشور کې ورته اجازه راغلې وي که څه هم د شريعت سره په ټکر کې هم وي چې ټکر يې په ډېرو مواردو کې واضحه دی، لکه د اسلام نه مرتد کېدلو ته اجازه، د اسلام د مقدساتو د سپکاوي اجازه، کفر او شرک ته د بلنې اجازه او داسې نور، چې دا ډول آزادي حرامه او د کفر لامل ده. الله ﷻ مونږ ته مطلقه آزادي نه ده راکړې بلکې فرمايلي دي: مَّا يَلْفِظُ مِن قَوْلٍ إِلَّا لَدَيْهِ رَقِيبٌ عَتِيدٌ [سُورَةُ ق: ١٨]-

**ژباړه:** انسان د خولې نه هېڅ يوه کلمه نه راوباسي مگر د هغه په خوا کې څوکی کوونکی(ملائکې) تيار وي. نو انسان ازاد نه دی بلکې هره خبره او عمل يې ليکل کېږي چې د هغې موافق حساب به ورسره کېږي خو د بين الملل منشور انسانانو ته د هر کفر او شرک آزادي ورکوي چې دا د اسلام له اصولو خلاف کار دی.

**یو شپیتمه ماده کې وایي:**

**۱. اقتصادي او ټولنیزه شورا د ملګرو ملتونو له ۵۴ غړو هېوادونو څخه جوړه شوې چې د عمومي اسامبلی له خوا ټاکل کېږي.**

نو د اقتصادي چارو لپاره هم خپله شورا لري چې په دې سره اقتصادي نظام چلوي هغه چې ډېرو حرامو کاروبارونو ته یې اجازه ورکړې لکه سودي سیستم، د ټکسونو سیستم، جواري، د شرابو خرڅ او نور ډېری حرامو کارونو او کسبونو ته یې اجازه ورکړې تر دې چې د رسمي جواز په لرلو سره د اجرت زنا ته هم اجازه وي لواطت او نورو بد فعلیو ته هم آزادي وي.

**درې نوي یمه ماده کې وایي:**

**۱. د ملګرو ملتونو ټول غړي د عدالت نړیوالې محکمې د اساسنامې منونکي دي.**

د عدالت نړیواله طاغوتي محکمه یې هم ایجاد کړې چې په وضعي قوانینو باندې فېصلې کوي او غړي هېوادونه به یې ټول قوانین مني که هر څومره د الله د قانون خلاف هم وي. بلکې په راروانه ماده کې یې ترې ژمنه اخستې لیکلي دي:

**څلور نوي یمه ماده:**

**۲. د ملګرو ملتونو ټول غړي ژمنه کوي چې په هره قضایي دعوه کې به د محکمې پرېکړه مني.**

نو غړي هېوادونه د نړیوالې محکمې له پرېکړې څخه انکار نشي کولی او نه یې هم رد کولی شي که څه هم د شریعت خلاف هم وي. نړیواله محکمه چې د اصلي کافرو نه تشکیل شوې؛ د هغوی جوړ کړي کفري قوانین منل او ژمن ورته پاتې کېدل خو لوی کفر دی چې په دغه کفر کې د بین الملل ټول غړي هېوادونه اخته دي، د دوی د عدالت د محکمې اصول د اسلامي اصولو او اساساتو خلاف دي اسلام چې کوم کار ته عدل وایي دوی ورته ظلم وایي، اسلام چې کوم کار ته

عبادت وايي لکه جهاد او داسې نور، دوی ورته ترهګري وايي، اسلام چې کومې سزاګانې او تعزيرات د ټولنې د اصلاح لپاره ټاکلي دي دوی هغو ته ناوړه او غير انساني سزاګانې وايي او همداسې نور، نو د داسې محکمې پريکړه منل او ورته ژمن پاتې کېدل د اللهﷻ سره په حاکميت کې برخه دار جوړل دي اللهﷻ فرمايي: وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِ أَحَدًا، (سورة الكهف ٢٢): **ژباړه:** او اللهﷻ په خپلو اختياراتو کې هېچا ته برخه نه ورکوي. خو دوی نړيواله محکمه د اللهﷻ سره په ډېرو اختياراتو کې شريکه کړې او د اللهﷻ د اختياراتو په څېر اختيارات يې ورته ورکړي دي.

**يو سلو دريېيمه ماده:**

**که له نورو تړونونو سره د ملګرو ملتونو د غړو ژمنې او پرېکړې د منشور له ژمنو سره په ټکر کې وي، د منشور ژمنو ته به لومړيتوب ورکول کېږي.**

نو د منشور ژمنې او پرېکړې يې په هر څه مخکې کړي دي تر دې چې د ملګرو ملتونو د غړو په نورو مخالفو پرېکړو به هم مخکې وي نو د الله او د هغه د رسول په پرېکړو خو به په طريق اولی مخکې وي. او دا حقيقت په هغو مسائلو کې په ډاګه شوی کوم چې د بين الملل له منشور خلاف وي لکه شرعي حدودات، د کفارو د غلامۍ نظام، د جزيې نظام، د کفارو او مشرکينو نه برائت او داسې نور، په دې او دې ته ورته ټولو مسئلو کې د بين الملل د منشور پرېکړې په شرعي پرېکړو مخکې دي. نو دا په ښکاره توګه د الوهيت او د ربوبيت دعوه ده چې ملل ملحده کړې ده او غړو هېوادونو يې ورسره منلې ده.

**الغرض:** دا د دوی د منشور يو څو مادې وې چې مونږ د بېلګې په توګه دلته راوړې او مناسب تفصيل مو ورله وکړو که څه هم دا مادې ډېر تفصيل ته اړتيا لري خو مونږ په همدې بسنه کوو که څوک د دغه منشور په هکله زيات تفصيل غواړي نو له العزائم ادارې څخه رسمي خپور شوی کتاب "صريح الكفر والإلحاد لمن رضي

بعضوية الملل الملحدة والعناد" ته رجوع وکړئ په ياد کتاب کې د دغه منشور د ځينو مادو مناسب تفصيل کتلی شئ.

## خلاصة البحث:

دا د ملل متحد د هغه منشور لنډ وضاحت و چې ځيني تش په نوم اسلامي هېوادونه يا تش په نوم د جهاد دعوه کوونکې ډلې يې د ژمنتيا چغې وهي او د دې په احترام او درناوي ټينګار کوي تاسو وکتل چې د دوی منشور له کفري مادو څخه ډک دی نو څوک چې د دې احترام او د منلو ژمنه کوي هغه د ډېرو باطلو معبودانو د عبادت ژمنه کوي لکه د ملل متحد د امنيت شورا، د اقتصاد او ټولنيزه شورا، د دوی نظامي کمېټه، نړيواله طاغوتي محکمه، عمومي اسامبلې، د قيموميت شورا او داسې نور د طاغوتي شوراګانو او قانون سازانو د عبادت ژمنه کوي چې کفر يې واضح دی ځکه بين الملل د الله ﷻ ټول دين بدل کړی، د الله ﷻ په ځای يې په ځمکه کې ډېری معبودان مقرر کړي، د قران په ځای يې خپل منشور ليکلی، خپل حل حرم لري، خپل قانون ساز او محکمه لري، خپل نظام او خپل سياست، اقتصاد، فرهنګ او عادات لري، خپل ټولنيز او انفرادي قوانين لري، خپل فوځ او عسکر لري، خپل د ولاء براء معيار لري، خپل مقدسات لري، خپل جنايات او خپل اساسات لري او داسې نور، د ځمکې د ټولو چارو د اختيار دعوه يې کړې او د الله ﷻ واک يې ترې پوره سلب کړی نو څوک چې دغه ټلوالې ته د احترام په سترګه ګوري، پرېکړو ته يې ځانونه ژمن بولي، او د دوی د منشور د احترام چغې او نعرې زمزمه کوي، که داسې خلک چېرې د ايمان دعوه لري ايمان ورڅخه سلب شوی، د اسلام د ډېرو ماتوونکو مرتکبين ګرځېدلي، تر هغه يې الله ته يو عمل هم د قبلېدو وړ نه دی تر څو چې يې په ټولو باطلو معبودان کفر نه وي کړی، د بين الملل په منشور يې کفر

نه وي کړی او په الله يې صحيح ايمان نه وي راوړی، دوی ته په دغه حال کې يو عمل هم ګټه نه ورکوي د دوی د جهاد دعوه بې ځايه ده د ايمان دعوه يې بې ځايه ده، دوی بايد چې له هر څه مخکې د خپل ايمان غم وکړي.

**په اخره کې دغو ټولو د جهاد دعوه کوونکو ډلو ته سپارښتنه کوو!**

که د شرعي جهاد توان نه لرئ، خپل ايمانونه د بين الملل د فشارونو يا د محبت له وجې مه بربادوئ. د بين الملل د کفري منشور په تعظيم کې ستاسو اعلامیې مونږ وخت په وخت ګورو. که چېرې دا کتاب ډېر نه اوږدېدلی نو مونږ به ستاسو د هرې ډلې ببلې ببلې اعلاميې راوړې وای او په دغه کفري منشور به مو ستاسو اقرارات راښکاره کړي وی خو ښه به دا وي چې د خپل ايمان تجديد وکړئ او د دغه کفر اختيارولو په ځای په خپلو کورونو کې کېنئ او يا هم د موحدينو لاره اختيار کړئ او د ځمکې له هر ډول طاغوت څخه برائت او په مقابل کې د جهاد اعلان وکړئ. دېکې ستاسو د ايمان حفاظت پروت دی او په همدې کې ستاسو د دنيا او د اخرت عزت پروت دی. وما علينا الا البلاغ.

# جهاد او د نړيوالو کفارو او مرتدينو مرستې!

په دې زمانه کې مونږ د ډېرى داسې ډلو شاهدان يو چې يو لورې ته د شرعي جهاد نعره پورته کوي او عملاً هم د ځينو طواغيتو سره په جنگ کې ښکېل ليدل کېږي خو بل لورې ته د نړى يا د سيمې د طواغيتو سره په اړيکه کې وي له هغوى سره پټې او ښکاره ناستې او مجلسونه لري، له هغوى څخه د بسپنې په توگه ځينې مرستې تر لاسه کوي، په ښکاره توگه يې هلته نظامي مراکز فعال وي چې جنگي تشکيلات ترې کوي، زخميان يې هلته په ښکاره توگه تداوي کېږي، مشران يې ښه په امن او اطمينان کې هلته پاتې کېږي تر دې چې دغه کوربه هېواد يې په ډېرو ځايونو کې دفاع او تائيد هم کوي او د ورپېښ شويو فشارونو مخه ورڅخه نيسي او د رهبريت او مديريت واگې يې هم تر ډېره حده د کوربه هېواد په لاس کې وي که څه هم بل لورې ته دغه هېواد د اسلام او مسلمانانو سره په دښمنى مشهور وي چې جيلونه يې له مسلمانانو څخه ډک وي، مدرسې او جوماتونه يې بمباري کړې وي، مسلمانان د ترهگرى په نوم شهيدانه وي، د اسلام په مقابل کې د نړى د جنايتگرې ټلوالې کلک غړيتوب لري، د اسلام او مسلمانانو په مقابل کې د مختلفو ډگرونو نمائندگي کوي او داسې نور جنايات ترسره کوي خو بل لورې ته د خپلو مفادو لپاره د ځينو جهاد په نوم راپورته شويو ډلو کوربه توب هم کوي او د هغوى سره ډول ډول مرستې هم کوي، نو ايا د داسې دولتونو سره د اړيکه لرونکو ډلو مبارزه به شرعي جهاد بلل کېږي او که نه؟ نو د دې په وضاحت کې وايو:

## کفار په دوه ډۇله دي یو:

١. مــرتـدین

٢. اصلي کافر

## ❖ لومړی: له مرتـدینو څخه د مرستو اخیستل:

د مرتدینو تعریف خو مخکې ذکر شوی دی. حکم یې دا دی چې هر ډۇل تعامل ورسره حرام دی، مرسته اخیستل ورڅخه حرام دي، دوستانه اړیکې ساتل ورسره حرام دي، خپلوي پالل ورسره حرام دي او داسې نور...

**لامل یې دا دی:** چې مرتد د ارتداد په حال کې پرېښودل جائز نه دي، بلکې یا به اسلام راوړي او یا به وژل کېږي چې په دې د علماؤ اجماع ده دلیل: نبيﷺ فرمایي: مَن بَدَّلَ دِينَه فاقتُلوه (أخرجه البخاري:٣٠١٧) **ژباړه:** څوک چې مرتد شو ویې وژنئ. نو دا حکم عام دی د مرتدینو یو فرد، طائفې او دولت ټولو ته شامل دی، او له دې حدیث څخه سلفو علماؤ هم دغه فهم اخستی دی چې دلته یې اقوال رانقلوو:

شیخ الاسلام ابن تیمیهؒ وایي: هَؤُلَاءِ أَعْظَمُ جُرْمًا عِنْدَ اللَّهِ وَعِنْدَ رَسُولِهِ وَالْمُؤْمِنِينَ مِنْ الْكَافِرِ الْأَصْلِيِّ مِنْ وُجُوهٍ كَثِيرَةٍ. فَإِنَّ هَؤُلَاءِ يَجِبُ قَتْلُهُمْ حَتْمًا مَا لَمْ يَرْجِعُوا إِلَى مَا خَرَجُوا عَنْهُ لَا يَجُوزُ أَنْ يُعْقَدَ لَهُمْ ذِمَّةٌ وَلَا هُدْنَةٌ وَلَا أَمَانٌ وَلَا يُطْلَقُ أَسِيرُهُمْ وَلَا يُفَادَى بِمَالٍ وَلَا رِجَالٍ وَلَا تُؤْكَلُ ذَبَائِحُهُمْ وَلَا تُنْكَحُ نِسَاؤُهُمْ وَلَا يسترقون؛ مَعَ بَقَائِهِمْ عَلَى الرِّدَّةِ بِالِاتِّفَاقِ [مجموع الفتاوى ٢٨/ ٤١٣].

**ژباړه:** دوی د اصلي کافر څخه د الله، رسول او مؤمنانو په نزد ډېر غټ مجرمان دي له ډېرو لاملونو په اساس: ځکه چې د دوی وژل فرض دي ترڅو چې دوی هغه څه ته نه وي راګرځېدلې له څه شي چې وتلي دي (یعني دین ته نه وي راګرځېدلي) دوی سره د ټکس پرېکړه صحیح نه ده او نه ورسره د صلح پرېکړه صحیح ده او نه

د امان، او د دوی بندي به همداسې(احسانا) نه ازاديږي او نه به هم د پيسو يا سړيو په بدل کې ازاديږي او د دوی حلالې به نه خوړل کيږي او نه يې د ښځو و سره نکاح کيږي او نه به غلامان کيږي ترڅو چې دوی په خپل ارتداد پاتې وي؛ په اتفاق د علماو. امام ابن حزمؒ وايي: "إجْمَاعُكُمْ مَعَنَا عَلَى أَنَّ الْمُرْتَدَّ لَا يُقَرُّ عَلَى رِدَّتِهِ، بِخِلَافِ الْمُشْرِكِ الْكِتَابِيُّ الَّذِي يُقَرُّ عَلَى كُفْرِهِ إذَا أَدَّى الْجِزْيَةَ صَاغِرًا وَتَدَمَّمَ، وَأَنَّهُ لَا يُقْبَلُ مِنْ الْمُرْتَدَّ جزْيَةَ. ا.هـ (المحلى بالآثار ١٢/ ٣٣). **ژباړه:** تاسو مونږ سره په دې اجماع کړی چې مرتد به په خپل ارتداد نه پرېښودل کيږي په خلاف د کتابي مشرک چې دا به د ذلت په حال کې په جزيه ورکولو سره پرېښودل کيږي خو د مرتد نه جزيه نه قبليږي.

امام ماورديؒ وايي: " وَلَا يَجُوزُ إِقْرَارُ الْمُرْتَدِّ عَلَى رِدَّتِهِ بِجزْيَةٍ وَلَا عَهْدِ، وَلَا تُؤْكَلُ ذَبِيحَتُهُ، وَلَا تُنْكَحُ مِنْهُ امْرَأَةٌ [الأحكام السلطانية للماوردي ص:٩٥، والأحكام السلطانية لأبي يعلى الفراء ص: ٥١]. **ژباړه:** د مرتد په خپل ارتداد باندې په جزيه او تړون سره پرېښودل جايز نه دي، او حلاله خوړل يې هم جايز نه دي او د مرتدې ښځې سره نکاح هم جائز نه ده.

ابن قدامهؒ وايي: ولا يجوز استرقاق المرتد ؛ لأنه لا يجوز إقراره على ردته.[الكافي في فقه الإمام أحمد ٤/٦٣]، **ژباړه:** د مرتد غلام کول جايز نه دي، دا ځکه چې د مرتد په خپل ارتداد پرېښودل جايز نه دي.

او په اعانة الطالبين کې وايي:المرتد لا يقر على ردته فلا يقبل منه إلا الاسلام،[إعانة الطالبين على حل ألفاظ فتح المعين ٤/١٥٠] **ژباړه:** مرتد به په خپل ارتداد نه پرېښودل کيږي او د اسلام څخه پرته به ترې بل څه نه قبليږي.

نو که چېرې د مرتد نه مرسته اخيستل يا ورسره نور تعامل جائز شي د پورته ذکر شوي صريح حديث او د اجماع خلاف راځي ځکه چې د تعامل په صورت کې د

مرتد په خپل ارتداد تقرير يا پرېښودل راځي چې دا جائز نه دي.

دويم لامل: د مرتدينو نه په جنګ کې مرسته اخيستل يا ورسره نور تعامل کول هغوی ته د مېلان سبب ګرځي چې مفسدت يې د مصلحت نه زيات دی اللهﷻ فرمايي: وَلَا تَرْكَنُوٓا۟ إِلَى ٱلَّذِينَ ظَلَمُوا۟ فَتَمَسَّكُمُ ٱلنَّارُ وَمَا لَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ مِنْ أَوْلِيَآءَ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ [سُورَةُ هُود : ١١٣]- **ژباړه:** د دغو ظالمانو لورې ته يو بڅری مه کږېږئ، که نه نو دوزخ به مو ونغاړي. او تاسې به کوم داسې دوست او سرپرست ونه مومئ چې له اللهﷻ څخه مو وژغورلای شي او له هېڅ يو ځای څخه به تاسې ته مرسته ونه رسيږي.

او دا يوه واضحه خبره ده کومو ګوندونو چې د مرتدو طواغيتو سره دوستانه اړيکې پاللي دي او له هغوی څخه يې مرستې تر لاسه کړي دي نو اخر کې د هغوی په موالات کې اخته شوي دي او د هغوی کرايي جګړه ماران ګرځېدلي دي چې په دې اړه د موجوده ډلو حال ستاسې مخې ته دی؛ له پخوانيو ټولو دعوو او دريځونو څخه په شاه شوي دي او هماغه دريځ ته يې ترجيح ورکړې کوم چې عامو مرتدو دولتونو اختيار کړی دی.

نو دا خو د مرتدينو څخه د مرستې اخيستلو حکم شو، او هر چې له اصلي کفارو څخه مرسته اخستل دي لکه يهود، نصارا، هندوان او داسې نور، نو د هغوی په اړه په حديث د مسلم کې راغلي دي: عائشه ابیَ فرمايي: د بدر په ورځ نبي عليه السلام ته يو مشرک راغی ويې ويل: زه دې لپاره راغلی يم چې له تاسره جنګ ته لاړ شم او غنيمت حاصل کړم، رسول اللهﷺ ورته وفرمايل: آيا په الله او رسول ايمان لرې؟ هغه وويل: نه. نبيﷺ ورته وفرمايل: فارجع ، فلن أستعين بمشرك.

**ژباړه:** ځه بيرته وګرځه زه هېڅکله له مشرک څخه مرسته نه اخلم. [رواه مسلم: ١٨١٧].

او په بل روايت کې راځي:

عَنْ خُبَيْبِ بْنِ عَبْدِ الرَّحْمَنِ، عَنْ أَبِيهِ، عَنْ جَدِّهِ، قَالَ: خَرَجَ رَسُولُ اللهِﷺ فِي بَعْضِ غَزَوَاتِهِ ، فَأَتَيْتُهُ أَنَا وَرَجُلٌ قَبْلَ أَنْ نُسْلِمَ ، فَقُلْنَا : إِنَّا نَسْتَحْيِي أَنْ يَشْهَدَ قَوْمُنَا مَشْهَدًا فَلَا نَشْهَدُهُ. قَالَ: أَسْلَمْتُمَا ؟ قُلْنَا: لَا، قَالَ: فَإِنَّا لَا نَسْتَعِينُ بِالْمُشْرِكِينَ عَلَى الْمُشْرِكِينَ.
[رواه البيهقي: ١٧٦٥٧، ورواه أحمد والحاكم وقال: هذا حديث صحيح الإسناد ولم يخرجاه، والطحاوى في مشكل الآثار والطبراني في الكبير، وقال الهيثمي في المجمع: ٣٠٣/٥: رواه أحمد والطبراني ورجال أحمد ثقات، وقال شعيب الأرناؤوط في تعليقه على المسند: إسناده ضعيف دون قوله: فلا نستعين بالمشركين على المشركين، فهو صحيح لغيره].

**ژباړه:** له خبيب بن عبد الرحمن څخه نقل دي چې هغه يې له خپل پلار څخه نقل کوي هغه يې د ده له نيکه څخه نقل کوي ، چې هغه ويلي دي: نبيعليه السلاميوې غزا ته ووت نو زه او يو سړی ورته راغلو مخکې له دې چې اسلام راوړو، ورته ومو ويل: مونږ ته حيا راځي چې زمونږ قوم دې جنګ ته ځي او مونږ دې ورسره نه يو. نو رسول اللهﷺ وفرمايل: آيا تاسو اسلام قبول کړی دی؟ مونږ وويل: نه، نو هغه وفرمايل: مونږ له مشرکانو څخه د نورو مشرکانو په مقابل کې مرسته نه اخلو.

دې حديث ته علماؤ صحيح ويلي دي، له دې احاديثو څخه استدلال په دې توګه کيږي: کله چې له هغو کافرانو څخه چې محاربين(جنګيان) نه وي مرسته اخستل جايز نه شو نو د محارب کافر څخه مرسته اخستل خو په طريقه اولی جايز نه دي چې په دې اړه دا احاديث صريح دليل دی. او دا يوه واضحه خبره ده چې په اوس وخت کې د نړی ټول کفار محاربين دي له دوی سره د مسلمانانو له خوا هيڅ مشروع تړون نشته که کوم تنظيمونه د تړون دعوه هم لري نو دعوه يې باطله ده ځکه چې د کفارو سره تړون کول د افرادو يا د محلي تنظيمونو کار نه دی بلکې دا د شرعي خليفه کار دی چې په شرعي شرطونو او قيوداتو به بنا وي او د ټولو

مسلمانانو په نمائندګی به وي او ګټه به يې هم ټولو مسلمانانو ته عامه وي يوازې د يو تنظيم يا د مشخصو افرادو په ګټه به نه وي. که غواړئ چې د کافرانو سره د تړون شرطونه وپيژنئ نو له العزائم اداري څخه خپور شوی کتاب "طالبان بين الإسلام والديموقراطية صـ ۱۳۳ " ته رجوع وکړئ هلته يې وضاحت شوی دی.

**الغرض:** کومو احاديثو کې چې د اصلي کافرو څخه د مرستې اخستلو جواز ذکر دی؛ که څه هم هغه احاديث د ذکر شويو احاديثو په څېر صحيح او صريح نه دي، خو بيا هم د موجوده کافرانو په اړه ترې استدلال نشي کيدای ځکه چې يو خو دوی محاربين دي او له کومو کافرانو څخه چې مرسته غوښتل شوې او يا يې پخپله د جنګ لپاره د وتلو اجازه غوښتې نو هغوی مستأمنين، معاهدين او يا هم ذميان وو چې هغوی خپل ځانګړې احکام لري او محاربين نه وو.

## ❖ دوهم : له اصلي کافرو څخه د مرستو اخيستل:

دا چې له اصلي کافرو څخه د مرستې اخيستلو په جواز کې چې علماؤ کوم شرطونه ويلي دي په ځانګړې توګه د افرادو مرسته، چې په هغې سره يې د منعې او د جواز د احاديثو تر منځ د تطبيق هڅه کړې نو هغه شرطونه هم په اوسنو کافرو کې نه موجوديږي او له کفارو څخه د مرستې اخستلو په اړه حرمت اصل دی.

او دريمه وجه يې هماغه ده کومه چې مخکې ذکر شوه چې په اوس وخت کې له کفارو څخه مرسته اخيستل د شرعي مصلحت خلاف دي، ځکه چې مونږ ډېرى ډلې او تنظيمونه وکتل چې ببرته د مرسته کوونکو کفارو په موالات کې اخته شوي او له شرعي منهج څخه شا ته شوي دي که له کفارو څخه په جهاد کې د مرستې اخيستلو په اړه زيات تفصيل ته اړتيا وي نو له العزائم اداري څخه خپور شوی کتاب "طالبان

بين الإسلام والديموقراطية صـ ٩٨" ته رجوع وکړئ هلته يې پوره تفصيل شوی مونږ دلته په لنډه توګه راوړه.

## خلاصة البحث:

د دې بحث نتېجه دا شوه چې په اوس وخت کې کومې ډلې د جهاد دعوې تر څنګ له محاربو کفارو او مرتدينو څخه مرستې تر لاسه کوي که د افرادو وي که مالي، که نظامي يا اقتصادي او نورې... وي نو دا ډلې له اسلام څخه منحرف شوې دي .دوی د شرعي جهاد او شرعي منهج د تابعدارۍ په ځای خپلو خواهشاتو پسې روان شوي دي او د کفارو په مختلفو دامونو کې راګېر شوي دي، بلکې په مستقيم يا غير مستقيم ډول د کفارو کرايي جګړه ماران ګرځېدلي دي، نو مسلمانان بايد د دوی په تشو دعوو او شعارونو دوکه نشي او په دې اړه يې له کفارو سره موالات او دوستانه اړيکو ته نظر وکړي او هم يې د اسلام سره جفا او له کفارو سره وفا ته نظر وکړي نو نور به هم ورته حقيقت په ډاګه شي ان شاء الله لکه څنګه چې ابو الوفاء بن عقيل الحنبلي رَحِمَهُ ٱللَّهُ ويلي دي: إذا أردت أن تعلم محل الإسلام من أهل الزمان، فلا تنظر إلى زحامهم في أبواب الجوامع، ولا ضجيجهم في الموقف بلبيك، وإنما انظر إلى مواطأتهم أعداء الشريعة، [الآداب الشرعية لابن مفلح ٢٦٨/١]. -

**ژباړه:** کله چې ته وغواړې چې د خپلې زمانې د خلکو مرتبه د اسلام څخه ووېژنې نو د جوماتونو په دروازو کې يې ګڼې ګونې ته مه ګوره او مه يې د عرفې په ميدان کې د "لبيك" چغو ته ګوره بلکې د شريعت له دښمنانو سره يې موافقې ته وګوره.

## نو مونږ هم مسلمانانو ته دا پیغام لرو!

مخکې له دې چې د دې ډلو جنګي کارنامو ته وګورئ او ترې متاثره شئ د دوی له کفارو او مرتدینو سره دوستانه اړیکو ته وګورئ او له دغه ځای څخه یې اصلیت درک کړئ.

**یادونه:** البته د پورته ذکر شویو ډلو سره که ځینو مخلصو مجاهدینو د کفارو په مقابل کې په داسې وخت کې ملتیا کړې وي چې دغه مهال د دوی انحراف څرګند نه و نو داسې خلک د الله په نزد معذور دي او له اللهﷻ څخه امېد دی چې دوی ته د خپلو نېکو اعمالو او سترپاؤ ښه بدله ورکړي ځکه اللهﷻ د چا نېک عمل نه ضائع کوي.

# جهاد او د موحدينو په خلاف له کفارو سره مرسته!

ځيني ډلې بيا داسې هم شته چې ځانونو ته مجاهدين وايي خو بل لورې ته د سيمي او نړۍ د حربي کفارو او مرتدينو سره مستقيماً په رابطه کې وي او د مسلمانانو په خلاف ورسره ډول ډول مرستې کوي، په کانفرانسونو او غونډو کې ورسره برخه اخلي، مشورې ورسره کوي او استخباراتي معلومات ورسره شريکوي، او د مسلمانانو په خلاف نظامي او تبليغاتي جګړه مخته بوځي چې په دې سره کفارو ته خپله وفاداري ثابتوي، محبت يې راجلبوي او هم وطنپاله او قومپاله خلکو ته دا ثابتوي چې ګواکې دوی د وطن اصلي بچيان دي، د وطن او قوم ساتونکي دي، د وطن رسمونو او رواجونو ته احترام لرونکي دي، د لرګيو او د تاريخي آثارو او د معبدونو ساتونکي يې دي او داسې نور، نو که څه هم د داسې خلکو حکم په شريعت کې ډېر واضحه دی خو بيا به هم په لنډه توګه داسې ووايو: چې کوم خلک له کفارو سره د مسلمانانو په خلاف مرسته کوي برابره ده که مرسته يې ورسره په هر اړخ کې وي، په هر دليل او هره توجيه يا تأويل سره وي؛ داسې خلک د الله له دين څخه مرتد شوي دي، په اسلام کې هيڅ ځای نلري که څه هم ځانونو ته مجاهدين، د اسلام ستر فاتحين او د الله او د رسولﷺ محبّين هم وايي، دوی د دغه مرستې له امله د اهل السنة والجماعة په نزد ددې اجماعي ناقض مرتکب ګرځيدلي دي چې وايي :

مظاهرة المشركين ومعاونتهم على المسلمين كفر بإجماع المسلمين، د مسلمانانو په خلاف له کفارو سره مرسته کول د مسلمانانو په اجماع کفر ده چې دا قاعده شيخ محمد بن عبد الوهاب رحمه الله راوړې، له قران او حديث څخه پرې ډېرى دلايل شتون لري، ځيني يې په دې ډول دي: الله جل جلاله فرمايي:

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا -لَا تَتَّخِذُوا- ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ- بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ - وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ اللهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ [سورة المائدة:٥١]

**ژباړه:** ای مؤمنانو! یهودیان او نصارا خپل ملګري مه نیسئ، دوی په خپلو منځو کې سره ملګري دي. او که ستاسې څخه څوک هغوی خپل ملګري نیسي، نو بیا هغه هم په هماغو کې شمېرل کېږي. په دې کې شك نشته چې الله ظالمان له خپلې لارښوونې څخه بې برخې کوي.

امام شوکانيؒ په خپل کتاب فتح القدير کې د ذکر شوي ایت په تفسیر کې ویلي دي: والمُرادُ مِنَ النَّهْيِ عَنِ اتِّخاذِهِمْ أوْلِياءَ أنْ يُعامَلُوا مُعامَلَةَ الأوْلِياءِ في المُصادَقَةِ والمُعاشَرَةِ والمُناصَرَةِ، **ژباړه:** د دوی سره له دوستانې څخه د منع کېدلو مقصد دا دی چې د دوی سره به د دوستانو په څېر چلند نه کېږي، په ملګرتیا او په اوسېدلو او مرسته کولو کې.

شیخ المفسرین امام طبري ؒ د ذکر شوي آیت په تفسیر کې ویلي دي:

والصواب من القول في ذلك عندنا أن يقال: إن الله تعالى ذكره نهَىَ المؤمنين جميعا أن يتخذوا اليهود والنصارى أنصارًا وحلفاءَ على أهل الإيمان بالله ورسوله وغيرَهم، وأخبر أنه من اتخذهم نصيرًا وحليفًا ووليًّا من دون الله ورسوله والمؤمنين، فإنه منهم في التحزُّب على الله وعلى رسوله والمؤمنين، وأن الله ورسوله منه بريئان.

**ژباړه:** د دې په اړه زمونږ په نزد صحیح قول دا دی چې داسې وویل شي چې یقیناً الله ﷻ ټول مؤمنان له دې څخه منع کړي دي چې د مؤمنانو په مقابل کې له یهودو او نصاراؤ سره مرسته او ملګرتیا وکړي او اللهﷻ د دې خبر ورکړی دی چې څوک له یهودو او نصاراؤ سره دوستي وکړي. له اللهﷻ، د اللهﷻله رسول او مؤمنانو پرته، دا به د هغوی په ډله کې د اللهﷻ، د اللهﷻد رسول او مؤمنانو په مقابل کې ولاړ وي او اللهﷻ او رسول ﷺبه ورڅخه بیزاره وي.

امام قرطبيرحمه الله ویلي دي: قولهﷻ: وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ أي: يعضدهم على المسلمين ـ فَإِنَّهُ مِنْهُمْ ـ بين تعالى أن حكمه كحكمهم؛ وهو يمنع إثبات الميراث للمسلم من المرتد.
**ژباړه:** د الله دا وینا چې فرمایي: وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ - یعنې چا چې د مسلمانانو په مقابل کې له کفارو سره مرسته وکړه -فَإِنَّهُ مِنْهُمْ -اللهﷻ دا خبر ورکړی دی چې د ده حکم به هم پشان د هغوی وي او دا مسلمان د مرتد له میراث څخه منع کوي.
( یعنې چا چې له کفارو څخه د مسلمانانو په مقابل کې مرسته واخیسته نو دا مرتد شو چې له مؤمن سره یې اړیکه ختمه شوه، دا امکان نلري چې مسلمان له دې مرتد څخه میراث واخلي او نه دغه مرتد له مسلمان څخه میراث اخستلی شي).
امام ابن حزمرحمه الله په [**المحلی** ۱۱/ ۱۳۸] کې ویلي دي: صح أن قولهﷻ "وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُم" إنما هو على ظاهره بأنه كافر من جملة الكفار، وهذا حق لا يختلف فيه اثنان من المسلمين. **ژباړه:** د الله د دې قول په اړه چې فرمایي"وَمَنْ يَتَوَلَّهُمْ مِنْكُمْ فَإِنَّهُ مِنْهُم" صحیح خبره دا ده چې دا په ظاهر بناء دی چې دا هم د نورو کفارو پشان کافر دی او دا حق خبره ده چې په دې کې دوه مسلمانان هم اختلاف نه لري.
شیخ محمد بن عبد الوهابرحمه الله وایي: إن الأدلة على كفر المسلم إذا أشرك بالله أو صار مع المشركين على المسلمين - ولو لم يشرك - أكثر من أن تحصر من كلام الله وكلام رسوله وكلام أهل العلم المعتمدين. [الرسائل الشخصية ص ۲۷۲].
**ژباړه:** د هغه مسلمان په کفر دلایل چې له الله سره بل څوک برخه دار جوړ کړي یا له مشرکانو سره د مسلمانانو په خلاف ملګرتیا وکړي ـ که څه هم له الله سره یې برخه دار نه وي جوړ کړی؛ بې شماره دي، د الله د کتاب، د نبي ﷺ د احادیثو او د باوري علماؤ له ویناؤ څخه.

په دې مسئله کې نور هم ډېر دلايل شتون لري چې ځيني يې په "طالبان بين الإسلام والديموقراطية صـ١١٥ "کتاب کې هم کتلی شئ.

دا خو د دې مسئلې شرعي حيثيت و، که مونږ اوس د ځينو ډلو حال ته وګورو نو دغه ذکر شوی ناقض په کې ډېر په واضحه توګه موجود شوی داسې چې د سيمې او نړۍ د طواغيتو سره يې د مسلمانانو په خلاف ډېرې پټې او ښکاره وعدې کړې چې وخت په وخت يې راتازه کوي او په خپل عمل کې يې راښکاره کوي، د کفارو په لمسه مسلمانان شهيدان کوي او هم يې ښځې او بچيان جيلونو ته بوځي او د خوارجو د لقب تر څنګ يې په نورو بدو بدو نومونو نوموي. خو بل لورې ته د کفارو ساتنه کوي، د سرحداتو ساتنه يې کوي او دوستانه اړيکي ورسره پالي چې په پايله کې يې د کفري ټلوالې له خوا له ډېرې امتيازاتو څخه برخمن شوي دي په دې توګه چې د هغوی له خوا ورته ډالري کڅوړې لېږدول کېږي، بندېزونه ترې لرې کېږي، د سفرونو آزادي ورته ورکول کېږي، سفارتي اړيکي ورسره پالل کېږي، د دښمنۍ له ليست څخه ايستل کېږي او نورې ډېرې اسانتياوې ورته ورکول کېږي، دا ټول اقدامات يوازې د دې لپاره ترسره کېږي چې د کفارو له خوا ورسپارل شوی مأموريت په ښه توګه ترسره کړي او د هغوی نيابتي جګړه مخته بوځي او مسلمانان ونکړای شي چې اسلامي نظام حاکم کړي او يا هم د کفارو ګټو او امنيت ته خطر جوړ کړي.

نو داسې نيابتي ډلې چې هر ځای کې وي بايد مسلمانان ورباندې دوکه نشي او نه ورڅخه د دين د قيام او د شرعي جهاد طمعه وکړي، بلکې له دوی څخه په کامله توګه بېزاري وکړي او په مقابل کې يې د حقيقي اسلام او مسلمانانو مرسته وکړي.

# جهاد او منهجي فساد!

**مسلمانانو ورونو!** لکه څنګه چې تاسو ته معلومه ده چې روغ منهج او پالېسي د جهاد بنياد دی چې له دې پرته جنګ هېڅ شرعي بڼه نه لري بلکې دغه جنګ د جاهليت جنګ بلل کېږي او جهاد نه بلل کېږي .خو ډېرى د جهاد په نوم راپورته شوې ډلې چې له اولې ورځې څخه يې روغ منهج پرېښى؛ په عقيدوي او عملي انحرافاتو کې اخته دي او که داسې ډلې واک ته هم ورسېږي اسلام ته يې له زيان پرته نوره هېڅ ګټه نشته ځکه واک ته رسېدل يې د دې لامل ګرځي چې فاسده نظريات نور هم پیاوړي شي او د فاسده منهج دعوت ته نوره هم لاره خلاصه شي، د بېلګې په توګه دلته يې ځيني هغه منهجي انحرافاتو ته اشاره کوو چې نن سبا په کې ډېرى ډلې اخته دي، دې لپاره چې مسلمانان د دغو باطل پرسته ډلو په دامونو کې راګېر نشي او چېرې په باطل باندې د حق ګومان ونکړي.

## ۱. د شرکي مزارونو تعظيم:

شرکي مزارونه ختمول چې د جهاد لوی هدف دی ځيني د کږو منهجونو پيروان يې تعظيم کوي، د فيوضاتو، برکتونو، د دعاګانو د قبلېدلو، د حاجتونو پوره کېدلو او د فائدې او د ضرر امېد ترې کوي او د اسلام له مقدساتو څخه يې ګڼي او ساتنه يې کوي چې دا د دوی د منهجي انحراف يوه لويه نښه ده، ځکه په اسلام کې د قبرونو تعظيم نشته، ګومبتې او مزارونه جوړول پرې نشته او نه يې هم په خوا کې لمونځ جائز دی، نه ورڅخه د فيوضاتو، تبرکاتو او د حاجتونو طلب جائز دی بلکې دا کارونه د شرک لامل دي او د شريعت د ډېرى نصوصو خلاف دي چې ځيني يې په دې ډؤل دي:

عَنْ أَبِي الْهَيَّاجِ الْأَسَدِيِّ، قَالَ: قَالَ لِي عَلِيُّ بْنُ أَبِي طَالِبٍ: " أَلَا أَبْعَثُكَ عَلَى مَا بَعَثَنِي عَلَيْهِ رَسُولُ اللَّهِﷺ؟ أَنْ لَا تَدَعَ تِمْثَالًا إِلَّا طَمَسْتَهُ، وَلَا قَبْرًا مُشْرِفًا إِلَّا سَوَّيْتَهُ " (رواه مسلم: ٢٢٤٣) **ژباړه:** د ابي الهياج الاسدي رضي الله عنه څخه نقل دي هغه وايي : ماته علي رضي الله عنه وويل: ایا زه تا هغه کار پسې ونه لیږم چې زه ورپسې رسول اللهﷺ لیږلی وم؟ دا چې ته مه پرېږده یو بت مګر ماتوه یې، او نه یو اوچت قبر مګر برابره وه یې. قبر مشرف؛ هغه قبر ته وايي چې بيرغونه وربانديې لګېدلي وي يا وربانديې ابادي جوړه شوې وي چې د لېرې نه ښکاري او يا هم د نورو قبرونو نه اوچت وي نو برابرول يې په دې توګه دي چې د شريعت خلاف ابادي يا بيرغونه ترې ختم کړي او د نورو قبرونو سره  يې برابر کړي.

او په بل حديث کې دي: عَنْ جَابِرٍ، قَالَ: " نَهَى رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْ يُجَصَّصَ الْقَبْرُ، وَأَنْ يُقْعَدَ عَلَيْهِ، وَأَنْ يُبْنَى عَلَيْهِ ".(رواه مسلم: ٢٢٤٥).

**ژباړه:** د جابر رضي الله عنه څخه نقل دي هغه وايي: نبي عليه السلام د قبر له چونه کولو څخه منعه کړې ده او له دې څخه چې څوک وربانديې لپاسه کيني او له دې څخه چې ابادي وربانديې جوړه شي.

او په بل حديث کې راځي: عَنْ أَبِي مَرْثَدٍ الْغَنَوِيِّ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِﷺ: " لَا تَجْلِسُوا عَلَى الْقُبُورِ، وَلَا تُصَلُّوا إِلَيْهَا ". (رواه مسلم: ٢٢٥٠) - **ژباړه:** د ابو مرثد الغنوي رضي الله عنه څخه نقل دي هغه وايي: رسول اللهﷺ فرمايلي دي: په قبرونو مه کېنئ او مه ورته مونځ کوئ.

علامه ابن القيم رحمه الله د ثقيف د کيسې په فايدو کې وايي:

ومنها أنه لا يجوز إبقاء مواضع الشرك والطواغيت بعد القدرة على هدمها وإبطالها يوماً واحداً فإنها شعائر الكفر والشرك وهي أعظم المنكرات فلا يجوز الإقرار عليها مع القدرة البتة [زاد المعاد ج ٣ ص ٥٠٦].

**ژباړه:** او ځيني له دغو ګټو څخه دا دي چې شرکي او طاغوتي ځايونه د يوې ورځې لپاره پرېښودل جائز نه دي وروسته له دې چې په ورانولو او ختمولو يې قادر شې، ځکه چې دا د کفر او د شرک نښې دي او ډېر لوی منکر دی، نو له قدرت لرلو سره يې هېڅکله پريښودل جائز نه دي.

دا د هغو قبرونو او مزارونو حکم دی کوم چې د شريعت خلاف جوړ شوي وي او يا هم د شرک او ګمراهی مراکز ګرځېدلي وي بايد چې ونړول شي او د يوې ورځې لپاره هم پاتې نشي خو افسوس چې اوس دا حکم معطل شوی، ډېرى ډلې چې د جهاد دعوه لري پخپله په دغه عقيده کې مبتلا دي پخپله د قبرونو او مزارونو تعظيم ته ژمن دي نو له دوی څخه به د داسې احکامو د تنفيذ څه طمعه وشي، له داسې خلکو به د قبرستی عقيدې د مخنيوي څه طمعه وشي چې د خپلو مشرانو په قبرونو مزارونه جوړوي او د قبرونو په خوا کې يې د قران ختمونه کوي؟!، له دوی څخه هېڅ د خير طمعه نشي کېدای، نو مسلمانانو ته پکار دي چې له دغه ځای څخه د دوی انحراف درک کړي او د دوی په ظاهري لباس او شعارونو دوکه نشي.

## ۲. په حيلو سره د ځيني نشه يي توکو آزادي!

همداراز د نورو ډېرى عقيدوي انحرافاتو ترڅنګ د بې ځايه حيلو کارول او د شريعت احکام پرې تحريفول هم د ځينو ډلو د انحراف يوه څرګنده نښه ګرځېدلې چې دلته يې د حيلو په توسط د ځيني نشه يي توکو د حلالوالي خاصه يادونه کوو. لکه نسوار، سيګرټ او داسې نور،چې ډېرى د جهاد او د اسلامي نظام دعوه لرونکې ډلې يې حلال ګڼي او د حلالوالي لپاره ورله ګڼې حيلې او تحريف شوي دلايل وړاندې کوي، خو مونږ به يې له دغه فاسدې عقيدې څخه هم پرده پورته کړو دې لپاره چې مسلمانان يې له دغه انحراف څخه هم خبر شي او ځان ورڅخه وساتي.

نبي عليه‌السلام د ټولو نشه يي توکو په اړه يوه جامع خبره کړې ده او يو جامع صفت يې

بيان کړی دی که چېرې دغه صفت په يو شي کې وموندل شي حکم به يې هم ورته شامل وي او که ونه موندل شي حکم به ورته شامل نه وي لکه حديث کې راځي:
عن ابن عمر رضي الله عنهما قال: قال رسول الله ﷺ: «كل مُسْكِرٍ خَمْرٌ، وكل مُسْكِرٍ حرام، ومن شرِب الخمر في الدنيا فمات وهو يُدْمِنُهَا لَمْ يَتُبْ، لَمْ يَشْرَبْهَا في الآخرة». [صحيح مسلم: ۲۰۰۳] **ژباړه:** له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی هغه وايي چې رسول الله ﷺ فرمايلي: هر نشه کوونکی شی شراب دي او هر نشه کوونکی شی حرام دی، څوک چې په دنيا کې شراب وڅښي او معتاد پرې مړ شي او توبه ونه کړي، نو په آخرت کې به شراب و نه څښي.
له دې حديث څخه معلومه شوه چې د شرابو د حراموالی لامل نشه ده، نو هر هغه شی چې انسان نشه کوي، هغه که هر ډول وي حرام دی.
عَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللَّهِ قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ: «مَا أَسْكَرَ كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ».
[حسن]- [رواه أبو داود: ۳۱۹۸، والترمذي وابن ماجه وأحمد]-
**ژباړه:** له جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه نقل دي هغه وايي، چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: کوم شی چې ډېر يې نشه راولي نو لږ يې هم حرام دی.
نو دې حديث کې هم د تحريم علت نشه بيان شوې نو که د يو شي ډېر مقدار نشه راولي او لږ يې نه راولي نو دغه لږ يې هم حرام دی ځکه چې دغه لږ يې هم د دې لامل گرځي چې ډېر يې وکاروي چې بالآخره نشه يې کړي.
عن عائشة قالت: قال رسول الله ﷺ: " كل مسكر حرام ما أسكر الفرق منه فملء الكف منه حرام"، قال ابو عيسى: قال احدهما في حديثه: الحسوة منه حرام، رواه الترمذي: ۱۸۶۶وقال حديث حسن) ژباړه: د عائشه رضي الله عنها څخه نقل دي هغې ويلي دي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: هر نشه يي شی حرام دی د کوم شي چې شپاړس رطله نشه راولي (يو رطل د ځينو هېوادونو په اندازه د پنځه سوه گرامه

برابر دی) نو یو ورغوی / یو وار ترې هم حرام دی. ابو عیسی (امام ترمذي) ویلي دي: یو له دغه دوه راویانو څخه (چې محمد بن بشار او عبد الله بن معاویه الجمحي دي؛)په خپل روایت کې ویلي دي: یو گوټ یې هم حرام دی.

نو دا صحیح احادیث په دې دلیل دي چې نشه یي شی که لگ وي او که ډېر وي که د خوراک ښباک له جنس څخه وي او که لوگی وي چې هسې کش کېږي؛ کله چې عقل پټوي او انسان د عادي حالت نه بل حالت ته بدلوي د دې خوړل، ښبل او لوگی یې کش کول حرام دي که څه هم لږ یې نشه هم نکوي خو کله چې ډېر یې نشه کوي نو د لږو یې هم دغه حکم دی. دا خو د نشه یي توکو د حرمت حکم شو چې په دې حکم کې ټول نشه یي شیان برابر دي او ځیني په کې له ځینو څخه مستثنا نه دي . اوس چې سره له دغه هومره واضحه دلایلو ځیني ډلې نسوار او سیگرټ یا نور نشه یي توکې مباح گڼي نو دا یې د منهجي انحراف نښه ده خو له دې څخه هم ډېره د تعجب وړ خبره دا ده چې ځیني ډلې د دغه نشه یي توکو عشر هم اخلي او مباح یې گڼي لکه کوکنارو او داسې نور، چې په دې ځای کې دوی دوه جرمونه ترسره کوي . یو خو حرام شیان د ځینو حیلو په کارولو سره حلال گڼي او بل دا چې عشر هم په کې اخلي او له اموال زکویه څخه یې شماري، حال دا چې د تریاکو کښت او تجارت هر څه حرام دي نو زکات خو په کې په طریق أولی حرام دی ځکه نبيعليه السلام فرمايي: أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ اللَّهَ طَيِّبٌ لَا يَقْبَلُ إِلَّا طَيِّبًا، وَإِنَّ اللَّهَ أَمَرَ الْمُؤْمِنِينَ بِمَا أَمَرَ بِهِ الْمُرْسَلِينَ، فَقَالَ : يَأَيُّهَا الرُّسُلُ كُلُوا مِنَ الطَّيِّبَاتِ وَاعْمَلُوا صَالِحًا إِنِّي بِمَا تَعْمَلُونَ عَلِيمٌ سورة المؤمنون آية ٥١ الحديث، (رواه مسلم: ١٦٩٢ )

**ژباړه:** ای خلکو! اللهﷻ پاک دی، نه قبلوي مگر پاک شیان او یقیناً اللهﷻ مؤمنانو ته په هغه څه امر کړی دی چې خپلو پیغمبرانو ته یې پرې کړی و فرمایلي دي: اې پیغمبرانو! پاک شیان وخورئ او نیک عمل وکړئ؛ تاسې چې هر څه کوئ، زه

وربانديې ښه پوهېږم.

نو داسې خلک به څنګه د اسلام نمائندګي وکړی شي چې په ناروا حيلو کارولو سره حرامو شيانو ته آزادي ورکوي او مباح يې ګڼي؟ او د دوی مبارزه به څنګه اسلامي مبارزه وبلل شي چې دغه ډول منحرف منهج لري؟!

## ۳. له مسلمانانو څخه ټکسونه اخستل:

د دې ډلو د انحراف بله نښه دا ده چې له مسلمانانو څخه ټکسونه اخلي چې په شريعت کې هېڅ جواز نه لري بلکې دا يوه کبيره ګناه ده لکه په حديث د بريده کې، چې د غامديه ښځې د زنا کيسه په کې ذکر ده چې بيا يې توبه ويستلې او رجم شوې ده؛ نبي عليه السلام د هغې په اړه فرمايلي دي: وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَقَدْ تَابَتْ تَوْبَةً لَوْ تَابَهَا صَاحِبُ مَكْسٍ لَغُفِرَ لَهُ،(رواه مسلم: ۳۲۱۴) **ژباړه:** قسم په هغه ذات چې زما روح د هغه په لاس کې دی، دې ښځې داسې توبه وويستله که چېرې د ټکس اخيستونکی دغسې توبه وباسي نو ښښنه به ورته وشي. امام نووي د دې حديث په شرحه کې وايي: فيه أن المكس من أقبح المعاصي والذنوب الموبقات.

**ژباړه:** په دې حديث کې دا خبره ذکر ده چې ټکس اخيستل ډېره بده او هلاکوونکې ګناه ده. او په يو حديث کې راغلي دي چې په سند کې کلام دی خو ځينې علماؤ ورته د شاهد له وجې حسن ويلي دي نبي عليه السلام فرمايي: لا يدخل الجنة صاحب مكس، (رواه ابو داود: ۲۹۳۷وغيره) **ژباړه:** جنت ته به د ټکس اخيستونکی داخل نشي.

[د کلام وجه يې عنعنه د ابن اسحاق مدلس ده خو شاهد يې: إن صاحب المكس في النار(أخرجه أحمد (٤/ ۱۰۹)؛ حديث ياد شوی چې دا په شواهد او متابعات کې د حسن درجه لري والله أعلم] .

مناوي په فيض القدير (٦/ ٤٤٩) کې د ذکر شوي حديث په فائدو کې وايي:

قال الطيبي: وفيه أن المكس من أعظم الموبقات وعده الذهبي من الكبائر ثم قال: فيه شبهة من قاطع الطريق وهو شر من اللص، فإن عسف الناس وجدد عليهم ضرائب فهو أظلم وأغشم ممن أنصف في مكسه ورفق برعيته. وجابي المكس وكاتبه وآخذه من جندي وشيخ وصاحب زاوية شركاء في الوزر أكالون للسحت. انتهى.

طيبي ويلي دي: په دې حديث کې دا خبره ثابته شوې چې ټکس اخيستل لويه هلاکوونکې ګناه ده، او امام ذهبي له کبيره ګناهونو څخه شمارلې ده، بيا وايي: په دې کې له ډاکه کوونکي ( په لاره خلکو شوکوونکي) سره ورته والی دی چې له غل څخه هم ناکاره دی که چېرې په خلکو زور زياتی وکړي او نوي ماليات /ټکسونه پرې ولګوي نو دا به د هغه چا په نسبت ډېر لوی ظالم وي چې په ټکس اخيستلو کې له انصاف څخه کار اخلي او د خپل رعيت سره نرمي کوي او د ټکس راټولونکی، د هغې ليکونکی، او اخيستونکی؛ که يو عسکر وي او که يو مشر وي او که په ګوټ کې ناست يو عبادت ګذار وي(يعني د يوې خانقا والا وي)؛ دا ټول په ګناه کې شريکان دي، د حرامو خوړونکي دي.

مرداوي په **"الإنصاف"** کې ويلي دي: ويدخل فيه -أي الغصب- ما أخذه الملوك والقطاع من أموال الناس بغير حق من المكوس وغيرها. (الإنصاف: ٦ /١٢٢)

**ژباړه:** او د غصب په حکم کې هغه څه هم داخل دي چې پاچاهان او په لاره خلکو شوکوونکي(ډاکوان) يې په ناحقه توګه د خلکو له مالونو څخه اخلي چې ټکسونه او نور دي.

نو دا د ټکس حکم دی چې علماؤ د شرعي نصوصو څخه فهم کړی دی. که څه هم ځيني علماؤ د مسلمان حاکم لپاره په ځينو خاصو مواردو کې د دې په جواز قول کړی دی لکه د قحط وېره وي يا د دښمن وېره وي او د ملک خزانه خالي وي نو

په دغه وخت کې په مالدارو او توان لرونکو خلکو باندې د مصیبت د مخنیوي لپاره که ټکس مقرر شي نو څه باک نه کوي خو دغه عارضي او اضطراري حالت دی، اصل یې حرام دی او بل دا چې دغه عارضي حالت کې هم اجازه مسلمان حاکم پورې خاص ده، هر چې طواغیت دي نو یو خو دوی په مسلمانانو د مشرۍ حقدار نه دي چې د احکامو تعمیل یې وشي او ټکسونه ورته ورکړل شي او بل دا چې دوی د مسلمانانو نه ټکسونه، ګمرکونه او مالیات اخستل د خپل اقتصاد یوه دائمي سرچینه ګرځولې چې په دې سره خپل شیطاني لښکر قوي کوي او په مسلمانانو باندې یې ظلمونو ته نور هم آماده کوي نو له دې وجې د دوی لپاره به ترې استدلال نشي کېدای بلکې د ټکسونو اخیستل به د دوی د منهج په انحراف او فساد یو زیاتي دلیل وي چې د دوی په خلاف به ترې استدلال کېدلی شي.

## ٤. د اصلي کفارو او مرتدینو سره د خبرو اترو دهلیز:

که څه هم د اړتیا په صورت کې د اصلي کفارو سره مذاکرات جائز دي ډېرې شرعي نصوص پرې دلیل دي لکه الله ﷻ فرمایي:وَإِن جَنَحُوا لِلسَّلْمِ فَاجْنَحْ لَهَا وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ- إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ [سُورَةُ الأنفَال: ٦١]- ژباړه: که دښمن د روغې جوړې خوا ته میلان ولري، نو ته هم د هغې لپاره تیار اوسه او پر الله توکُل وکړه. په یقیني ډول هماغه د هر څه اورېدونکی او په هر څه پوهېدونکی دی. او هم پرې د نبي ﷺ صلحې دلیل دي چې د یهودو او مشرکانو سره یې کړې دي. خو دلته د شرعي صلحې په اړه یو څو خبرې پېژندل پکار دي:

**اوله خبره دا ده:** چې صلحه یا مذاکرات د محلي تنظیمونو یا د افرادو کار نه دی بلکې دا د امیر عامه کار دی چې خپل شرطونه او اصول لري چې ځینې یې په ترون کوونکې کې یا د مسلمانانو په نماینده کې لازم دي چې تر ټولو مهم شرط

يې اسلام دی او ځيني شرطونه په همدغه تړون کې لازم دي چې له هغو څخه يو شرط دا دی چې تړون به له هر ډول فاسدو شرطونو څخه خالي وي. لکه د دښمن دا شرط چې د مسلمانانو بنديان به نه ازادوي، يا د مسلمانانو غصب شوی مال کفارو ته پرېښودل، يا ترې ټکس د شرعي اندازې نه کم اخيستل، يا ورته د مسلمانانو په وړاندې له ځيني ديني او دولتي واجباتو څخه ورتېرېدل او يا پرته له ضرورته هغوی ته مال ورکول؛ په دې شرطونو سره تړون لغوه ګرځي چې دا شرطونه په [مغني المحتاج جلد٦/ صـ٨٨ مکتبه شامله] کې په اجمالي توګه ذکر دي، او همداراز ځيني شرطونه د تړون د مودې په اړه لازم دي چې موده به يې تر يو وخته پورې محدوده وي او تړون به دايمي نه وي چې په دې خبره د فقهاو اتفاق دی. او همداراز د ځيني شرطونو لحاظ د تړون د بقا لپاره ضرور دی لکه په "بدائع الصنائع د کاساني رحمه الله" کې راغلي دي: وقال الجمهور: تنتقض الهدنة إذا نقضها العدو بقتال أو بمناصرة عدو آخر، أو قتل مسلم، أو أخذ مال، أو بسب الله ﷻ أو القرآن الكريم أو رسوله ﷺ أو التجسس على المسلمين، أو الزنا بمسلمة ونحوها،[ البدائع:١٠٩/ ٧، آثار الحرب: صـ ٣٨٠ وما بعدها]. **ژباړه:** جمهورو علماؤ ويلي دي: د صلحې تړون په دې سره ماتېږي چې دښمن کله جنګ پيل کړي، يا د مسلمانانو د بل دښمن سره مرسته وکړي، يا مسلمان ووژني، يا د مسلمان مال واخلي، يا الله ﷻ، قرآن کريم او د الله رسول ﷺ ته کنځل وکړي، يا په مسلمانانو جاسوسي وکړي او يا د مسلمانې ښځې سره زنا وکړي او داسې نور.

**دويمه خبره دا ده:** چې صلحه د ارتيا په صورت کې د اصلي کافر سره جائز ده خو د مرتدينو سره جواز نه لري برابره ده که د مرتدينو دولت وي که يوه طائفه يا يو فرد وي همدغه يې حکم دی ځکه چې د مرتدينو په اړه د علماؤ تر منځ په دوه خبرو اتفاق دی يوه خبره دا چې مرتد که اسلام قبول نکړي، وژل يې لازم دي.

دلائل پرې ډېر دي ځيني يې په دې ډول دي:

## اول دليل له احاديثو څخه:

۱ـ نبي ﷺ فرمايي: مَنْ بَدَّلَ دِينَهُ فَاقْتُلُوهُ، [رواه البخاري:۳۰۱۷]، **ژباړه:** څوک چې مرتد شو ويې وژنئ. دا حديث عام دی حکم يې مرتدو: طوائفو او افرادو ټولو ته شامل دی. تخصيص به د دغه عموم نه په قوي دليل سره کېږي او دليل نشته.

۲ـ په بل حديث کې دي نبي ﷺ فرمايي: لاَ يَحِلُّ دَمُ امْرِئٍ مُسْلِمٍ ، يَشْهَدُ أَنْ لاَ إِلَهَ إِلَّا الله وَأَنِّي رَسُولُ الله، إِلَّا بِإِحْدَى ثَلاَثٍ: النَّفْسُ بِالنَّفْسِ، وَالثَّيِّبُ الزَّانِي ، وَالمَارِقُ مِنَ الدِّينِ التَّارِكُ لِلْجَمَاعَةِ، [رواه البخاري: ۶۸۷۸].

**ژباړه:** د يو مسلمان چې دا گواهي ورکوي: نشته بل معبود په حق سره مگر يو الله دی او زه د الله رسول يم، وژل يې پرته له درې کارونو جايز نه دي: د بل نفس په بدل کې، او واده والا زناکار، او د دين او د مسلمانانو له ډلې څخه جدا کېدونکی.

نو دا حديث هم د مرتد په قتل دلالت کوي او همدغه يې اصلي حکم دی.

**دويم دليل:** د امت له اجماع څخه: د مرتد په وژلو د امت اجماع ده: لکه ابن عبد البر په [التمهيد: ۳۰۶/۵]کې وايي: مَنِ ارْتَدَّ عَنْ دِينِهِ: حَلَّ دَمُهُ، وَضُرِبَتْ عُنُقُهُ، وَالْأُمَّةُ مُجْتَمِعَةٌ عَلَى ذَلِكَ انتهى. **ژباړه:** څوک چې له دين څخه مرتد شو؛ وينه تويول يې جايز دي او څټ به يې وهل کېږي، د امامانو په دې اجماع ده.

او ابن قدامه په[المغني: ۳/۹] کې وايي: وَأَجْمَعَ أَهْلُ الْعِلْمِ عَلَى وُجُوبِ قَتْلِ الْمُرْتَدِّ. وَرُوِيَ ذَلِكَ عَنْ أَبِي بَكْرٍ، وَعُمَرَ وَعُثْمَانَ ، وَعَلِيٍّ، وَمُعَاذٍ، وَأَبِي مُوسَى ، وَابْنِ عَبَّاسٍ، وَخَالِدٍ، وَغَيْرِهِمْ، وَلَمْ يُنْكَرْ ذَلِكَ، فَكَانَ إجْمَاعًا انتهى.

**ژباړه:** علماو اجماع کړې چې د مرتد قتل واجب دی، دا خبره د ابو بکر، عمر، عثمان، علي، معاذ، ابي موسی، ابن عباس، خالد رضوان الله عليهم او نورو څخه نقل ده او هېڅ انکار پرې نه دی شوی نو دا اجماع شوه.

او امام نووی رحمه الله هم په شرح د مسلم [۲۰۸/۱۲]کې د مرتد په وژلو اجماع نقل کړې ده هغه ویلي دي: فِيهِ وُجُوبُ قَتْلِ الْمُرْتَدِّ، وَقَدْ أَجْمَعُوا عَلَى قَتْلِهِ-

**ژباړه:** په دې حدیث کې د مرتد د وژلو وجوب ثابت دی او د علماو په دې اجماع ده چې مرتد به وژل کیږي.

**او دویمه خبره دا ده** چې د علماؤ په دې هم اتفاق دی چې مرتد د ارتداد په حال کې په جزیه، صلحې او بل تړون سره پرېښودل جائز نه دي چې په اړه یې د اهل السنة والجماعة علماؤ اقوال مخکې ذکر شوي دي دلته به د امام ماوردي رحمه الله په قول راوړلو بسنه وکړو هغه وایي: وَلَا يَجُوزُ إِقْرَارُ الْمُرْتَدِّ عَلَى رِدَّتِهِ بِجِزْيَةٍ وَلَا عَهْدٍ، وَلَا تُؤْكَلُ ذَبِيحَتُهُ، وَلَا تُنْكَحُ مِنْهُ امْرَأَةٌ [الأحكام السلطانية للماوردي ص:۹۵، والأحكام السلطانية لأبي يعلى الفراء ص: ۵۱]، **ژباړه:** د مرتد په خپل ارتداد باندې په جزیه او تړون سره پریښودل جایز نه دي، او حلاله خوړل یې هم جایز نه دي او نه له مرتدې ښځې سره نکاح جایز ده.

**دا خو د مرتدینو د صلحې په اړه خبره وه .**

**دریمه خبره:** باید دا هم وپېژندل شي چې د مذاکراتو په پلمه د نړیوالو کفري قوانینو تر چتر لاندې سیاسي دفاتر خلاصول او خپل نمائنده گان ورته معرفي کول، کومه شرعي بنېه نه لري او نه هم د سلفو صالحینو په تاریخ کې کومه بېلگه لري. بلکې دا د کفارو سره موالاتو ته یوه لاره خلاصول دي چې د داسې دفاترو له پایلې څخه مونږ ته په ډاگه شوې ده. اسلامي تاریخ کې د صلحې تړون لپاره محدود استازي د محدودو ورځو لپاره تلي راغلي دي خو په دار الکفر کې همېشه نه دي میشت شوي.

نو په دې اساس داسې ویلی شو چې دغه د جهاد په نوم راپورته شوي محلي تنظیمونه چې نن سبا د کفارو او مرتدینو سره د روغې جوړې او د مذاکراتو چغې

وهي او د دې لپاره سياسي دفاتر خلاصوي په داسې حال کې چې ذکر شوې شرعي شرطونه په پام کې نه نيسي نو دا هم د دوی په منهجي انحراف يو ښکاره دليل دی نو له دې وجې د دوی تړونونو ته به د شرعي صلحې نوم نه ورکول کېږي بلکې د موالات او د تسليمی نوم به ورته ورکول کېږي.

## ۵. ډيپلوماتيکې اړيکې:

بل د انحراف لامل يې دا دی چې مروجه ډيپلوماتيکو اړيکو ته قائل دي او په دې لټه کې دي چې دغه اړيکې د اصلي کافرو او مرتدو هېوادونو سره د بين المللي قوانينو تر چتر لاندې فعالې کړي، هغه مروجه ډيپلوماتيکې اړيکې چې د اسلام سره په ډېری مواردو کې ټکر او خلاف لري چې د خلاف لاملونه يې په دې ډول دي:

- **اول لامل:** په اسلام کې ډيپلوماتيک اصول له قران او حديث څخه سرچينه اخلي، خو په بين الملل قوانينو کې ډيپلوماتيک اصول له اسلام څخه سرچينه نه اخلي بلکې د کفارو له وضع کړو قوانينو څخه سرچينه اخلي، نو هر څوک چې سفارتي خدمات ترسره کوي د بين الملل په اصولو کې به يې ترسره کوي هغه اصول چې د اسلام خلاف او منل يې کفر دی.
- **دويم لامل:** په اسلامي نظام کې د سفير صلاحيت تر يو څو خبرو رابند دی چې د اسلام دعوت، د جزيه دعوت يا بل مشروع تړون ته لاس رسی، او که دا نه وي نو جنګ ته تيارېدل، خو په بين الملل قوانينو کې د اسلام او د جزيي خبره بيخي مطرح نه ده بلکې د دوه هېوادونو تر منځ د سولې،ثبات او دوستانه اړيکو په اړه خبري کېږي.
- **دريم لامل:** په اسلام کې سفير محدود وخت لپاره وي خو په نړيوال قانون کې دايمي وي.

○ **څلورم لامل:** دا هم دی چې د بین الملل قوانینو کې سفیر د خپل هېواد د وګړو سیاسي، اقتصادي او ټولنیز امنیت او هوسایي لپاره د مقابل لورې څخه د حفاظت ژمنه تر لاسه کوي خو په اسلام کې هغه کفارو ته چې د اسلام او جزیي یا د بل مشروع تړون دعوت قبول نه کړي سر او مال ته یې د حفاظت ژمنتیا نشته. څوک چې په دغه حال کې کفارو ته ژمن ووسي هغوی د کفارو په موالات کې اخته، کرایي جګړه ماران بلل کېږي. چې نن په دغه موالات کې د نړی ټول طاغوتي حاکمان اخته دي، دوی د دپلوماتېکو اړیکو تر عنوان لاندې د کفارو ګټې او امنیت خوندي کوي او حربي کافرانو ته په خپلو هېوادونو کې د امنیت فضا برابروي، څوک چې یې امنیت ته ګواښ وي هغوی نیسي او د بدو، بدو سزاګانو سره یې مخ کوي.

○ **پنځم لامل یې دا دی:**چې په دپلوماتېکو اړیکو تړلي هېوادونه د یو بل سره د مسلمانانو او د اسلامي نظام په خلاف همکاري،طرحې او مشورې لاسلیکوي او د اسلام په جنګ کې د یو بل ملاتړی کوي،موالات معادات کوي او د نړیوالو کفارو استخباراتي چارې پر مخ وړي چې دا یې د کفر لوی لامل دی.

○ **شپږم لامل یې دا دی:** چې مروجه دپلوماتېکې اړیکې د ټولو کفارو سره پالل کېږي او په دغه اړیکو کې د اصلي کافر او مرتد کافر تر منځ توپیر نه کېږي. حال دا چې په اسلام کې د مرتد کافر سره هیڅ ډؤل اړیکې مشروع نه دي لکه څنګه چې مخکې دا خبره ذکر شوه. انتهى ملخصاً كما في الكتاب "إمعان النظر في منهج أدعياء السلفية المعاصرة صـ ٤٥٧ مع تصرف وزيادة مناسبة "

نو ذکر شوو اسبابو او لاملونو ته په کتو داسې ویلی شو چې موجوده دپلوماتېکې اړیکې د موالات مکفره لامل دي او د دغه ډلو په منهجي انحراف ښکاره دلیل دي.

## ٦. د دارالاسلام د قيام مخنيوی:

د دغه ډلو د انحراف بله نښه دا ده چې د دار الاسلام د قيام مخه نيسي. هغه ځمکه چې د مسلمانانو قوت او تمکين په کې وي، شريعت په کې حاکم وي، مهاجر او انصار په کې د عزت او امن ژوند تېروي؛ دوی يې نه برداشت کوي بلکې د مخنيوي لپاره يې د هر چا نه مخکې ودرېږي او په مقابل کې يې له هر ډول دسيسو څخه کار اخلي،تر دې چې د نړيوالې کفري ټلوالې سره هم لاس يو کوي او په جغ کې يې سر ورننباسي خو د مسلمانانو تمکين د يوې ورځې لپاره هم نه برداشت کوي، نو پايله يې دا شوه چې مسلمانان هر ځای کې د کفري قوانينو تر چتر لاندې وخت تېروي،سر،مال،او عزت يې محفوظ نه دي، عقيده يې محفوظ نه ده، ټولې مشروع ازادیانې ورڅخه سلب شوي دي، د عقيدې او دعوت آزادي ورڅخه سلب شوې او هم يې مقدسات د کفارو له خوا اشغال شوي او بمبار شوي دي او نورو له ډول ډول ظلمونو سره مخ دي، له اللهﷻ او بيا د مخلصو مؤمنانو پرته يې بل څوک د پوښتنې نشته، کومې ډلې چې پخوا يې د شريعت او د انتقام نعرې وهلې کله چې واک ته ورسېدلې له خپلو نعرو څخه په شا شول، هغه چې د قدس د ازادۍ نعرې يې وهلې کله چې واک ته ورسېدل اوس د قدس نوم په خوله نه اخلي، بلکې د قدس د دښمنانو او غاصبينو د امنيت او ساتنې نعرې وهي، د هغوی سره د دوستانه اړيکو نعرې وهي، د هغوی په امنيت کې خپل امنيت لټوي، د هغوی په اقتصاد کې خپل اقتصاد او د هغوی په عزت کې خپل عزت لټوي، که څه هم مخکې يې د يهودو او امريکا سره د جعلي دښمنۍ تمثيل وړاندې کووو او اوس خبره دې حد ته ورسېده چې ښېرته له هماغې امريکا او يهودو سره د اړيکو عادي کولو په هڅه کې دي، د هغوی د محبت راجلبولو په هڅه کې دي او د هغوی د اعتماد لاس ته راوړلو په هڅه کې دي، دوی د نړۍ د کفارو سره ښې اړيکې غواړي خو د مسلمانانو سره

ښو اړيکو ته تيار نه دي، دوی د نړۍ کفارو او مرتدينو ته د امنيت ډاډ ورکوي خو مسلمانان ترې په امن کې نه دي، دوی د نړۍ د کفارو له خوا جوړ کړي قوانين په احترام او درناوي سره مني خو د شريعت عملي تطبيق ته تيار نه دي، دوی د دار الکفر حفاظت او ساتنې ته چمتو دي خو د دار الاسلام قيام ته چمتو نه دي، دوی سره له قوته د اللهﷻ د قانون تحکيم ته چمتو نه دي نو ځکه خو د کفارو خالص غلامان، نانځکې، ګوډاګيان او د هغوی ساتونکي وګرځېدل، که کفار يې هر څومره غلط هم استخدام کړي؛ مخ ورته نشي ورګرځولی بلکې که چېرې د کفارو په حق کې د وطنيت يا قوميت په اساس کوم غلط ګام پورته هم کړي نو سبا له يې ببرته په پښو کې ورپرېوځي او معافي ترې غواړي او داسې ذلت ته تيار وي چې هېڅ ساری يې نه موندل کېږي، خو د خفګان خبره دا ده چې د دوی د غلطيو قيمت بې وزله مسلمانان ورپرې کوي، هغوی هم د کفارو د وحشتونو لاندې راځي او د ډول ډول کړاؤونو او تکليفونو سره مخ کېږي خو بيا هم د دغه منحرفو او ګمراه ډلو له امله يې قربانۍ بې ثمرې پاتې وي.

د شريعت ونه پرې نه خړوبېږي. د مسلمانانو سترګې په دار الاسلام نه يخيږي، څوک چې د دار الاسلام د قيام هڅه کوي دوی يې په سختۍ سره مخه نيسي او کلکه دښمني ورسره پالي چې همدا يې په اصل کې د شريعت سره دښمني ده او همدغه يې د منهجي انحراف او فساد څرګنده نښه ده.

## ۷. د نبوي منهج مخنيوی.

د دغه ډلو د انحراف بله څرګنده نښه دا ده چې يو لور ته خو د جهاد دعوه لري خو بل لور ته د نبوي منهج سره کلکه دښمني لري او د مخنيوي هڅه يې کوي تر دې چې ډېری خلک په دې تهمت نيسي چې دوی وهابيان دی، اته رکعته تراويح کوي، رفع اليدين کوي، امين بالجهر کوي، مونځ اوږد کوي، په مونځ کې لاسونه په

سینه ږدي، قال الله قال الرسول ډېر وايي، د وضعي قانون د حاکم تکفیر کوي، شرک او توحید ډېر یادوي، زیارتونه بد ګڼي، طواغیت او دې ته ورته کلمات ډېر کاروي او داسې نور د نبوي منهج سره سم کارونه یې د خپلې دښمنۍ اساسي ټکي ګرځولي وي او د مسلمانانو د نیولو، تعذیب ورکولو او د هغوی د وژلو لپاره یې روښانه دلایل ګرځولي وي، که څه هم له بلې خوا ته یې د شیعه روافضو، هندوانو، سیکانو، کمونسټانو او سېکولرانو او نورو وطني ډلو سره اتفاق راځي خو د هغه مسلمانانو سره یې اتفاق نه راځي چې د نبوي منهج لارویان وي، بلکې داسې مسلمانان په خوارجو، فتنه ګرو، دهشت ګردو، ترهګرو او نورو بدو القابو نوموي، له دې سربېره د خپل ژوند ډېری چارې یې د نبوي منهج خلاف تنظیم کړي وي .

د شخصي احوالو نه نیولې تر ټولنیز، مدني، سیاسي او جنایي احوال یې د نبوي منهج خلاف وي، ثقافت او فرهنګ یې د نبوي منهج خلاف وي، او همېش په دې هڅه کې وي چې په بې دینۍ، فحاشۍ او عریانۍ کې د نړۍ له کفارو سره سیالي وکړي او د هغوی عادتونه، رسمونه او رواجونو ته مشروعیت ورکړي، نو داسې خلک به څنګه د اسلام مرستندویان شي چې د نبوي منهج دښمنان وي او د کفارو دوستان وي؟ دا هېڅ امکان نه لري.

## خلاصة البحث:

دا خو د هغو منحرفو ډلو حال ته لنډه کتنه وه چې د اسلام په جامه کې یې د مسلمانانو سره جګړه پیل کړې او په مستقیم یا غیر مستقیم توګه یې د اسلام په خلاف اسلحه پورته کړې نو مسلمانانو ته پکار دي چې د دوی په تشو شعارونو او دعوو دوکه نشي بلکې د دوی خبرې او اعمال د قران او حدیث په تله وتلي او د سلفو صالحینو د منهج سره یې پرتله کړي نو بیا به ورته د دوی اصلیت نور هم په ډاګه شي. مونږ یې دلته ځینې انحرافات او خرافات په نښه کړل په همدې بسنه کوو که څوک د باطل پرسته ډلو او د هغوی د کږو منهجونو په اړه زیات معلومات تر لاسه کول غواړي نو له العزائم اداري څخه خپاره شوي کتابونه، رسالې او مقالې دې مطالعه کړي او هم دې د صوتي درسونو لړۍ تعقیب کړي په هغو کې د وخت د فرعوني ډلو په اړه هر اړخیز او کره معلومات شتون لري ان شاءالله او هم د معتمدو علماؤ شرعي تحلیل او مستندې فتواوې شتون لري ګټه دې ورڅخه واخلي.

# يوه شبهه او د هغې ځواب

دا چې ځيني خلک وايي موږ د الله په لاره کې د هر چا تر قيادت لاندې جنګيږو څوک چې د اصلي کفارو يا مرتدينو سره جنګيږي مونږ ورسره په دغه نيک کار کې ملګرتيا کوو که سبا ته زمونږ مشران شريعت نه قايموي نو دا به د هغوی کوتاهي وي زمونږ کوتاهي نه ده ځکه مونږ په نتيجه مکلف نه يو، مونږ په جهاد مکلف يو ... دا شبهه د ډېرو خلکو ذهن ته راځي او په همدې اساس د ځينو تش په نوم جهادي ډلو ملګرتيا او ملاتړی هم کوي په جنګونو کې ورسره برخه اخلي خو بل لورې ته د دغه ډلې د منهج او د عقيدې لحاظ نه کوي، د ايمان او د کفر لحاظ يې نه کوي!!

**نو مونږ د دغه شبهې په ځواب کې وايو:** دا خبره صحيح ده چې مونږ په جهاد مکلف يو په نتيجه مکلف نه يو که اينده کې اميران شريعت نه حاکموي دا به د هغوی کوتاهي وي زمونږ کوتاهي به نه وي .. خو دا خبره هم بايد وپېژنو چې مونږ په دې هم مکلف يو چې جهاد د مسلمان حاکم تر قيادت لاندې وکړو او د اسلامي لښکر په ملګرتيا کې وکړو ځکه مونږ د جهاد په اصولو کې دا خبره وپېژندله چې امير به مسلمان وي که څه هم فاسق مسلمان هم وي خو داسې کس چې د اسلام ډېرې نواقض يې اختيار کړي وي د مسلمانانو مشر نشي جوړيدای يا په بل تعبير کافر د مسلمانانو مشر نشي جوړيدای، اللهﷻ فرمايي: وَلَن يَجْعَلَ اللَّهُ لِلْكٰفِرِينَ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ سَبِيلًا [سُورَةُ النِّسَاء : ١٤١] - ژباړه: اللهﷻ د کافرانو لپاره پر مسلمانانو د برلاسه کېدو هيڅ کومه لاره نه ده جوړه کړې.

او نبيعليه السلام فرمايي: الإسلام يعلو ولا يعلى عليه. (رواه الدارقطني برقم: ٣٦٢٠ وسنده حسن)

**ژباړه:** اسلام به لپاسه وي او بل دين به وربانديې لپاسه نه وي.

امام صنعاني د دې حديث په فائدو کې ويلي دي:

فيه دليل على علوّ أهل الإسلام على أهل الأديان في كل أمر؛ لإطلاقه، فالحق لأهل الإيمان إذا عارضهم غيرهم من أهل الْمِلَل، (سبل السلام: ٢/ ٤٩٨). -

**ژباړه:** د دې حديث اطلاق په دې دليل دی چې مسلمانان به په نورو دينونو والاو باندې په هر څه کې لپاسه وي، نو حق به د مؤمنانو وي کله چې ورسره د بل دين والا په يو کار کې معارض(ټکر کې) واقع شي.

همداراز د علماوو په دې اجماع ده چې د کافر تر قيادت لاندې به جهاد نشي کېدای امام نوويرحمه الله ويلي دي: قال القاضي: فلو طرأ عليه كفر وتغيير للشرع أو بدعة خرج عن حكم الولاية، وسقطت طاعته، ووجب على المسلمين القيام عليه، وخلعه ونصب إمام عادل إن أمكنهم ذلك، فإن لم يقع ذلك إلا لطائفة وجب عليهم القيام بخلع الكافر ..(شرح مسلم للنووي: ١٢/٢٢٨) **ژباړه:** قاضي عياض ويلي دي: که چېرې په امير کې وروسته کفر راښکاره شي او د شرعي احکامو بدلول يا په کې بدعت (مکفّره) راښکاره شي نو د مشرۍ له حکم څخه ووتو او اطاعت يې ختم شو او په مسلمانانو باندې د هغه په خلاف پاڅون او د مشرۍ نه يې لرې کول او پر ځای يې د يو عادل امام ټاکل واجب شو که چېرې امکان وي خو که هر چاته د دې امکان نه وي مگر يوې ډلې ته وي نو په هغوی باندې واجب دي چې د دغه کافر د لرې کولو لپاره قيام وکړي.

دا حکم په امامت صغرى او کبرى دواړو کې متعين دی چې امير به مسلمان وي او کافر يا مرتد به نه وي. مسلمانانو چېرې هم د کافر يا مرتد په مشرۍ کې جهاد نه دی کړی او نه په شريعت کې د دې اجازه راغلې، او نه هم شرعي مصلحت د دې تقاضا کوي.

جهاد به د مسلمانانو په لښکر کې ترسره کېږي د کفارو په لښکر کې به جهاد نه ترسره کېږي نبيﷺ فرمایي: الْمُسْلِمُونَ تَتَكَافَأُ دِمَاؤُهُمْ، يَسْعَى بِذِمَّتِهِمْ أَدْنَاهُمْ، وَيُجِيرُ عَلَيْهِمْ أَقْصَاهُمْ، وَهُمْ يَدٌ عَلَى مَنْ سِوَاهُمْ. (رواه أبو داود برقم: ٢٧٥١). ژباړه: د مسلمانانو وینه له یو بل سره(په ارزښت کې) برابره ده، دوی به د یو ادنی او کمه درجه لرونکي مسلمان د وعدې لحاظ کوي او د لرې مسلمان د پناه لحاظ به کوي او دوی به د نورو (کافرو) په خلاف یو لاس وي. نو مسلمانان به خپل منځ کې سره یو موټی وي دا نه چې د کفارو سره به د نورو کفارو په مقابل کې یو موټی او لښکر وي!!.

**د جهاد په نوم د مرتدینو او طواغیتو په لښکر کې جنګېدل د ډېرو فسادونو لامل دی چې ځینې یې په دې ډول دي:**

١) **اول:** د مرتدینو سره د موالات لامل دی اللهﷻ فرمایي:

يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْيَهُودَ وَالنَّصٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِى الْقَوْمَ الظّٰلِمِينَ [سُورَةُ المَائدة : ٥١].

ژباړه: اې مؤمنانو! یهود او نصارا خپل ملګري مه نیسئ، دوی په خپلو منځو کې سره ملګري دي. او که له تاسې څخه څوك هغوی خپل ملګري نیسي، نو هغه به په هماغو کې شمار وي په دې کې شك نشته چې اللهﷻ ظالمان له خپلې لارښوونې څخه بې برخې کوي.

٢) **دویم:** د مرتدینو د فاسد منهج او پالیسی د پیاوړتیا لامل دی اللهﷻ فرمایي:

وَتَعَاوَنُوا عَلَى الْبِرِّ وَالتَّقْوَىٰ ۖ وَلَا تَعَاوَنُوا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَٰنِ ۚ وَاتَّقُوا اللَّهَ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ [سُورَةُ المَائدة: ٢] **ژباړه:** د نیکی او تقوا په کارونو کې له یو بل سره مرسته وکړئ او د ګناه او زیاتي په کارونو کې له یو بل سره مرسته مکوئ او له اللهﷻ څخه وویرېږئ یقیناً اللهﷻ سختې سزا والا دی.

۳) **دريم:** د مرتدينو او هم د هغوی د فاسد منهج د دفاع لامل دی،الله ﷻ فرمايي:

وَالَّذِينَ كَفَرُوا بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ [سُورَةُ الأنفَال : ۷۳] - ژباړه: هغه کسان چې کافران دي ځيني د ځينو دوستان (مدافعين) دي.

شيخ الاسلام ابن تيميه رحمه الله وايي:

والطائفة إذا انتصر بعضها ببعض حتى صاروا ممتنعين فهم مشتركون في الثواب والعقاب فأعوان الطائفة الممتنعة وأنصارها منها فيما لهم وعليهم ...... لأن الطائفة الواحدة الممتنع بعضها ببعض كالشخص الواحد... ( الفتاوى (۳۱۱/۲۸) -

ژباړه: او يوه ډله چې ځينې په ځينو نورو سره مرسته تر لاسه کړي تر دې چې يو قوت **(د يو بل نه دفاع کوونکي)** جوړ شي، نو دوی به په ثواب او سزا کې شريک وي نو د طائفې ممتنعې مرسته کوونکي په ګټه او تاوان کې له هغوی **(طائفې ممتنعې)** څخه حساب دي ... ځکه يوه ډله چې دفاع د ځينو په ځينو نورو سره کيږي د يو سړي په څېر دي.

نو بناءً د موجوده هغو ډلو ټپلو په ملګرتيا کې جنګېدل چې حال يې مخکې واضح شوی دی، د عقايدو او مناهجو شرعي ارزونه يې شوې؛ شرعي جهاد نه بلل کيږي. نو که غواړې چې شرعي جهاد وکړې، د الله رضا لاس ته کړې د مسلمان امير او د حق لښکر په ملګرتيا کې وکړه هغه چې اوصاف يې نژدې ذکر کيږي. ان شاء الله .

# دريم فصل

# د حق ډلې پلټنه!

له منحرفو ډلو بيانولو وروسته اوس د حق ډلې پلټنه کوو ځکه داسې خو نشي کېدای چې حق ډله دې ببخي نه وي بلکې حق ډله به تر قيامته پاتې وي په حديث کې راځي:

عَنْ ثَوْبَانَ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : " لَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي ظَاهِرِينَ عَلَى الْحَقِّ ، لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَذَلَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللَّهِ وَهُمْ كَذَلِكَ (رواه مسلم: ٣٥٥١) - ژباړه: د ثوبان ﷛ څخه نقل دي هغه وايي: رسول الله ﷺ فرمايلي دي: زما له امت څخه به همېشه يوه ډله د حق په وجه په نورو غالب وي (يا په حق به کلک پاتې وي)، هغه څوک به ورته ضرر نشي رسولی چې د دوی مرسته پرېږدي تر دې چې د الله ﷻ امر راشي (چې د قيامت نه مخکې هوا راولوتل دي) او دوی به همدغه سې په حق کلک وي.

خو دغه حق ډله به د باطلو ډلو تر منځ څنګه معلومه کړی شو؟ نو دې لپاره د حق ډلې اوصاف راوړو په چا کې چې دغه اوصاف موجود وو هغوی به د حق ډله وي او د حق لښکر به وي خو په چا کې چې موجود نه وو هغوی به منحرفه ډله وي، نو په دې اړه وايو:

# د حق ډلې اوصاف

حق ډله هغه ده چې د منحرفو ډلو د ذکر شويو اوصافو په ضد اوصاف ولري، ځکه دا قاعده ده چې وبضده تتبين الاشياء. په اضدادو سره شيان معلوميږي، ضديت يې په راروانو نقطو کې بيانوو:

## ۱) د شريعت خلاف وضعه شوو قوانينو نه انکارکول.

دا به يې عمده وصف وي، دغه وضعي قوانين که ډيموکراسي وي، که د بين الملل قوانين وي، که وطني او قومي تړې وي او که نور هر ډول قوانين وي، دوی به ورڅخه انکار کوي او د يوې لمحې لپاره به يې هم نه تسليموي، نه به يې په ژمنتيا او احترام اقرار کوي، نه به ورته فيصلې وړي او نه به يې د تحکيم هڅه کوي.

اللهﷻ فرمايي: فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتَّىٰ يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِيٓ أَنفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا [سُورَةُ النِّسَاء : ٦٥] -

**ژباړه:** نه، اې محمدﷺ! ستا په رب قسم چې دوی هېڅکله مؤمنان کېدای نه شي، تر څو چې په خپل منځي شخړو کې تا فېصله کوونکی ونه مني. بيا چې ته څه فېصله وکړې، پر هغې باندې په خپلو زړونو کې هم څه تنګي احساس نه کړي؛ بلکې سر تر پايه يې ومني.

او په بل ايت کې فرمايي: وَلَا يُشْرِكُ فِي حُكْمِهِۦٓ أَحَدًا، [سُورَةُ الكهف: ٢٦]

ژباړه: اللهﷻ په خپل حکومت کې له ځانه سره بل څوک نه شريکوي،

او په بل ځای کې فرمايي: اتَّخَذُوٓا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَٰنَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ اللَّهِ وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَآ أُمِرُوٓا إِلَّا لِيَعْبُدُوٓا إِلَٰهًا وَٰحِدًا ۖ لَّآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ ۚ سُبْحَٰنَهُۥ عَمَّا يُشْرِكُونَ [سُورَةُ التّوبَة : ٣١] - **ژباړه:** دوی خپل عالمان او خپل عابدان له الله نه غير واکداران د حل او د حرمت نيولي دي او د مريم زوی مسيح (يې هم) معبود نيولای، حال

داچې دوی ته حکم نه و شوی، مګر د دې چې دوی دې د یو حق معبود عبادت کوي چې نشته هېڅ حق معبود مګر همدی دی، هغه پاک دی له هغه څه نه چې دوی یې (ورسره) شریکوي.

او په دې معنا نور هم ډېر ایتونه شته، او حدیث د عدي بن حاتم پرې هم دلیل دی چې په هغې کې د وضعي قوانینو تابعداری ته د غیر الله عبادت ویل شوي دي چې الفاظ یې داسې دي: عن عدي بن حاتم قال: أتيت النبيﷺ و في عنقي صليب من ذهب فقال: يا عدي اطرح هذا الوثن من عنقك فطرحته فانتهيت اليه و هو يقرأ سورة براءة فقرأ هذه الآية {اتخذوا أحبارهم و رهبانهم أربابا من دون الله} حتى فرغ منها فقلت انا لسنا نعبدهم فقال: أليس يحرمون ما أحل الله فتحرمونه و يحلون ما حرم الله فتستحلونه؟ قلت بلى قال: فتلك عبادتهم. المعجم الكبير (١٧/ ٩٢) وهو حسن بمجموع طرقه.

**ژباړه:** له عدي بن حاتمرضي الله عنه څخه روایت دی هغه وایي: زه نبيعليه السلام ته راغلم په داسې حال کې چې د سرو زرو صلیب مې پر غاړه و، نو نبيعليه السلام وفرمایل: اې عدي! دا بوت دې د غاړې نه وغورځوه. نو ما هغه وغورځاو، نو زه د نبيعليه السلام خوا ته په داسې حال کې ورسېدم چې هغه سورت براءة لوستو نو دا ایت یې ولوستو: "دوی خپل عالمان او خپل عابدان له الله نه سیوا واکداران د حل او د حرمت نېولي دي"، تر دې چې د دغه ایت نه فارغ شو نو ما ورته وویل: مونږ خو د دوی عبادت نه کاوه. نو نبيﷺ وفرمایل: ایا هغوی به هغه څه نه حرامول چې الله به حلال کړي وو نو تاسو به حرام ګڼل او هغه څه به یې نه حلالول چې الله به حرام کړي وو نو تاسو به حلال ګڼل؟ ما ورته وویل ولې نه! نبي ﷺ وفرمایل: همدغه یې عبادت و.

نو له وضعي قوانینو څخه انکار کول هغه نښه ده چې په دې کې دا ټولې باطلې ډلې پاتې راغلي دي، ځکه دوی د بین الملل د قوانینو له ژمنتیا او د وطني او قومي

ترو څخه نشي وتلی خامخا په يو طاغوت کې ښکېل دي.

## ۲) د هر ډول شرکي عقائدو نه بېزاري:

که د تصوف شرکي عقيده وي، که اخوانېزم وي، که قبر پرستي وي، که د طاعت شرک وي، که د حاکميت شرک وي او که په اسماؤ صفاتو کې د الله سره برخه دار جوړول وي او که نورې شرکي او بدعي عقيدې وي، دوی به ترې انکار او بېزاري کوي په عقيده کې به يې داسې څه نه وي چې هغې ته شرک ویل کېږي، بلکې صفا د توحید عقیده به لري چې همدا ملت ابراهیمي دی او په همدې باندې اللهﷻ مونږ ته امر کړی دی فرمايلي دي: قَدْ كَانَتْ لَكُمْ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ فِيٓ إِبْرَٰهِيمَ وَالَّذِينَ مَعَهُۥٓ إِذْ قَالُوا لِقَوْمِهِمْ إِنَّا بُرَءَٰٓؤُا مِنكُمْ وَمِمَّا تَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ كَفَرْنَا بِكُمْ وَبَدَا بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمُ الْعَدٰوَةُ وَالْبَغْضَآءُ أَبَدًا حَتَّىٰ تُؤْمِنُوا بِاللَّهِ وَحْدَهُۥٓ [سُورَةُ المُمتَحنَة: ٤]-

**ژباړه:** ستاسې لپاره د ابراهیمعليه السلام او د هغه د ملګرو (په کیسه) کې یوه غوره نمونه د تابعدارۍ پرته ده، چې هغوی خپل قوم ته په ډاګه وویل: "موږ له تاسې او ستاسې له دغو معبودانو څخه چې له الله پر ځای يې بندګي کوئ، په ټينګه بېزار يوو. موږ ستاسې څخه منکر شوي يوو او زموږ او ستاسې تر منځ د تل لپاره دښمني او کينه ولوېدله، تر څو پورې چې پر يو الله ايمان رانه وړئ.

او په بل ايت کې فرمايي: وَمَن يَرْغَبُ عَن مِّلَّةِ إِبْرَٰهِۦمَ إِلَّا مَن سَفِهَ نَفْسَهُۥ - وَلَقَدِ اصْطَفَيْنَٰهُ فِي الدُّنْيَا - وَإِنَّهُۥ فِى الْءَاخِرَةِ لَمِنَ الصَّٰلِحِينَ [سُورَةُ البَقَرَة : ١٣٠].

**ژباړه:** او د ابراهیمعليه السلام له دين څخه مخ نه اړوي مګر هغه څوک چې ځان يې پخپله کم عقل کړی وي او يقيناً هغه مونږ په دنيا کې غوره کړی و او په اخرت کې به د نيکانو له ټولي څخه وي.

نو څوک چې ابراهیمي ملت پرېږدي هغه غټ کم عقل او بې لارې دی هېڅکله حقپرست نشي کېدای.

## ۳) د ټولو کفارو او مرتدینو نه بېزاري:

نو له حربي کفارو څخه به هیڅ مرستې نه اخلي، نه د کافر په خلاف او نه هم د مسلمان په خلاف او نه به ورسره مروجه دپلوماتیکي اړیکي پالي او نه به د مرتدینو او حربي کافرو سره د خبرو اترو لپاره مروجه سیاسي دفاتر خلاصوي، نه به يې مجلسونو او کانفرانسونو کې برخه اخلي، نه به ورسره سیاسي، اقتصادي او ستراتیژیکې اړیکي پالي بلکې له دوی څخه به بېزاري کوي، بغض او دښمني به ورسره کوي، الله ﷻ فرمایي:

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا لَا تَتَّخِذُوا ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ -بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ- وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ - إِنَّ اللهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ [سورة المائدة:٥١].

**ژباړه: اې مؤمنانو!** یهودیان او نصارا خپل ملګري مه نیسئ، دوی په خپلو منځو کې سره ملګري دي. او که ستاسې څخه څوک هغوی خپل ملګري نیسي، نو بیا هغه هم په هماغو کې شمېرل کېږي. په دې کې شک نشته چې الله ظالمان له خپلې لارښوونې څخه بې برخې کوي.

په بل ایت کې فرمایي: وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالنَّبِيِّ وَمَآ أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَآءَ وَلَٰكِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ فَسِقُونَ [سُورَةُ المَائدة : ٨١]-

**ژباړه:** که چېرې دوی په الله او په پیغمبر او په هغه کتاب چې په پیغمبر نازل شوی ایمان لرلی نو کافران به یې په دوستۍ نه وای نیولي خو ډېر له دوی څخه نافرمان دي.

## ٤) د منکراتو مخنیوی کول:

د هر ډول منکراتو مخه به نیسي او د حیلو په کارولو سره به یې ترویج ته لاره نه خلاصوي او نه به هم د منکراتو په مخنیوي کې د مشر او کشر، مالدار او غریب تر منځ توپیر کوي الله‎ﷻ فرمايي: وَلْتَكُن مِّنكُمْ أُمَّةٌ يَدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنكَرِ- وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ [سُورَةُ آل عِمرَان: ١٠٤] - **ژباړه:** په تاسې کې باید څه خلک هرو مرو داسې وي چې د نېکۍ لورې ته بلنه وکړي، په ښو امر وکړي او له بدو منعه وکړي. او خاص همدغه خلک بریالي دي.

او په حدیث کې راځي: عن أبي سعيد الخُدْرِيِّ‎رضي الله عنه قال: سمعت رسول الله ﷺ يقول: «مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ، فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ، وَذَلِكَ أَضْعَفُ الْإِيمَانِ». [صحيح مسلم- ٤٩] **ژباړه:** له ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دی هغه وایي: ما له رسول الله ﷺ څخه اورېدلي دي چې فرمایل یې: له تاسو څخه چې چا ناروا کړنه ولیده نو په لاس سره دې منعه کړي، که چیرته یې نشو کولای نو په ژبې سره دې منعه کړي، او که په ژبې سره یې نشو کولای نو په زړه سره (دې بد وګڼي)، او دا تر ټولو کمزوری ایمان دی.

## ٥) د دارالاسلام د قیام هڅه کول.

جهاد د دې لپاره مشروع شوی چې د الله په ځمکه د مسلمانانو تمکین قائم شي او شریعت نافذ شي چې دا به د حق ډلې تر ټولو لمړی هدف وي او په همدغه وصف به مشهور وي الله‎ﷻ فرمايي: الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّٰهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَوٰةَ وَءَاتَوُا الزَّكَوٰةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ- وَلِلَّهِ عَٰقِبَةُ الْأُمُورِ[سُورَةُ الحَجّ :٤١] - **ژباړه:** داسې خلک دي که چېرې مونږ دوی ته په ځمکه کې قدرت ورکړو، نو لمونځ به قایم کړي، زکات به ورکړي، په ښو چارو به امر وکړي او له بدیو څخه به منعه

وکړي. او د ټولو چارو پای د الله په لاس کې دي.

نو څوک چې د دار الاسلام، دار الهجرة او د شرعي حدودو د تطبيق په غم کې نه وي تحريک يې اسلامی نشي کېدای.

## ٦) د نبوي منهج تطبيقول:

د ژوند ټولې چارې به د نبيعليه السلام د منهج سره سمې تنظيموي که انفرادي وي، که اجتماعي، سياسي، اقتصادي، جنايي، فرهنګي، ثقافتي او نورې وي په دې ټولو کې به نبوي منهج نافذوي او همدغه منهج ته به خلک رابلې او دفاع به ورڅخه کوي، د مخالفو تګلارو، مفکورو او نظرياتو ترديد به کوي. اللهﷻ فرمايي: وَمَآ ءَاتَىٰكُمُ الرَّسُولُ فَخُذُوهُ وَمَا نَهَىٰكُمْ عَنْهُ فَانتَهُوا - وَاتَّقُوا اللَّهَ ۖ إِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ [سُورَةُ الحَشر: ٧]- **ژباړه:** څه چې تاسې ته پیغمبر درکوي هغه واخلئ؛ او له څه شي چې تاسې منعه کوي، له هغه څخه منعه شئ. د الله څخه ووېرېږئ، الله سخت سزا ورکوونکی دی.

او په بل ايت کې فرمايي: لَّقَدْ كَانَ لَكُمْ فِي رَسُولِ اللَّهِ أُسْوَةٌ حَسَنَةٌ لِّمَن كَانَ يَرْجُوا اللَّهَ وَالْيَوْمَ الْءَاخِرَ وَذَكَرَ اللَّهَ كَثِيرًا [سُورَةُ الأحزَاب : ٢١]

**ژباړه:** په يقيني توګه، ستاسې لپاره د الله په پيغمبر کې د نېکی يوه خورا غوره نمونه ده، د هر هغه چا لپاره ده چې د الله او د اخرت د ورځې هيله من وي او الله ډېر ډېر ياد کړي.

**دا خو د حق ډلې د باطلو ډلو سره د ضديت له اړخه اوصاف وو نور اوصاف يې په دې ډوَل دي:**

## ۱) قران او حدیث ته به خلک رابلي:

دعوت به یې یوازې قران او حدیث ته وي .د چا تقلید ته یا هم نورو باطلو مناهجو او ګوندونو ته به خلک نه رابلي. او نه به په نورو تګلارو او طریقو کې خپل نجات او کامیابي لټوي الله ﷻ فرمایي: وَاعْتَصِمُوا بِحَبْلِ اللَّهِ جَمِيعًا وَلَا تَفَرَّقُوا [سُورَةُ آل عِمرَان : ۱۰۳] - **ژباړه:** ټول د الله په رسۍ منګولې ولګوئ او تېت پرک کېږئ مه.
او په بل ایت کې فرمایي: وَهَذَا كِتَابٌ أَنْزَلْنَاهُ مُبَارَكٌ فَاتَّبِعُوهُ وَاتَّقُوا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ [الأنعام:۱۵۵] - ژباړه: او دا برکتي کتاب مونږ نازل کړی دی تابعداري یې وکړئ او له الله څخه ووېرېږئ دې لپاره چې رحم درباندې وکړی شي.
او په حدیث کې دي نبي عليه السلام فرمايي: تركتُ فيكم أمْرَيْنِ لن تَضِلُّوا ما تَمَسَّكْتُمْ بهما : كتابَ اللهِ وسُنَّةَ نبيِّهِ ﷺ (التمهيد لابن عبد البر: ۲٤/۳۳۱) - **ژباړه:** ما تاسو ته دوه شیان پرېښي دي هېڅکله به بې لارې نشئ تر څو چېورباندې منګولې لګولي وسئ چې د الله کتاب او د نبي عليه السلام سنت دي.

## ۲) د اهل السنة والجماعة عقیده به لري.

عقیده به یې د اهل السنة والجماعة وي. اشعري، ماتریدي،معتزلي، قدري، جهمي، مرجي، خارجي، صوفي او د نورو ګمراه عقائدو لاروي به نه وي، خو اهل السنة والجماعة څوک دي؟ نو علماؤ د دوی په تعریف کې ویلي دي:
هم الموحدون المتبعون لسنة النبيﷺ على فهم السلف الصالح- وهم الصحابة ومن تبعهم بإحسان- المجانبون للبدع وأهلها، الناصرون لدين الله. **ژباړه:** دوی( أهل السنة والجماعة) هغه موحدين دي چې د سلفو صالحينو- چې صحابه او هغه څوک چې په ښائسته طریقو کې د هغوی تابعداري کړې وي- د فهم سره سمه د سنتو تابعداري به کوي او د بدعاتو او بدعتیانو څخه به ځان ساتي او د الله د دين مدد به کوي.

او دوی ته أهل السنة والجماعة ځکه وايي چې د دوی نسبت د نبيعليه السلام طريقو ته کېږي چې د هغو په عملي کولو باندې په خپل ښکاره او پټه، په وينا، عقيده او عمل کې راجمع وي، بل نوم يې فرقه ناجيه (نجات موندونکي ډله ) هم دی.

نبيعليه السلام فرمايي: افترقت اليهود على إحدى وسبعين فرقة فواحدة في الجنة، وسبعون في النار، وافترقت النصارى على اثنين وسبعين فرقة، فواحدة في الجنة وإحدى وسبعون في النار، والذي نفسي بيده لتفترقن أمتي على ثلاث وسبعين فرقة، فواحدة في الجنة، وثنتان وسبعون في النار، قيل: يا رسول الله من هم؟ قال: هم الجماعة وفي رواية: [ ما أنا عليه وأصحابي ] رواه ابن ماجة وابن أبي عاصم، وهو حسن بشواهده. **ژباړه:** يهود يو اويا ډلو ته تقسيم شول يوه به يې په جنت کې وي او اويا به يې په اور کې وي، نصارا دوه اويا ډلو ته تقسيم شول، يوه به يې په جنت کې وي او يو اويا به يې په اور کې وي، او قسم په هغه ذات چې زما روح د هغه په لاس کې دی زما امت به هرو مرو درې اويا ډلو ته تقسيم شي يوه به يې په جنت کې وي او دوه اويا به يې په اور کې وي،

نو ورته وويلی شو: اې د الله رسوله دا (جنتيان) به څوک وي؟

نو هغه وفرمايل چې دوی به جماعت (ډله) وي او په بل روايت کې دي دا به هغه خلک وي چې زما او د صحابه ؤ په طريقو پسې راځي. دا حديث ابن ماجه او ابن أبي عاصم راوړی چې له شواهدو سره د حسن درجې ته رسيږي. نو څوک چې د صحابه ؤ د فهم سره سمه د نبيعليه السلام د طريقو تابعداري کوي هماغوی اهل السنة والجماعة او فرقه ناجيه دي برابره ده که د دنيا په هر ګوټ کې وي خو څوک چې د نبيعليه السلام او د صحابه ؤ دښمنان وي يا يې ورله طريقې شاه ته کړې وي او د عمل نه يې وروسته کړې وي خپل انفرادي، ټولنيز، سياسي، اقتصادي او د ژوند په نورو چارو کې تابعداري نه کوي نو هغوی اهل السنة والجماعة نشي کېدای.

## ۳) د سلفو صالحينو د فهم خلاف به نه کوي:

د قران او حديث نه به هغه معنا اخلي کومه چې ترې سلفو صالحينو فهم کړې او له ځانه به ورله نوې معناګانې او توجيهات نه لټوي او نه به په کې د خپلو خواهشاتو، ډلې او مذهب لپاره تأويلات کوي. الله ﷻ فرمايي: وَمَن يُشَاقِقِ الرَّسُولَ مِن بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدَىٰ وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيلِ الْمُؤْمِنِينَ نُوَلِّهِ مَا تَوَلَّىٰ وَنُصْلِهِ جَهَنَّمَ ۖ وَسَاءَتْ مَصِيرًا [سُورَةُ النِّسَاء : ١١٥] **ژباړه:** چا چې د پيغمبر خلاف وکړو وروسته له هغه چې هدايت ورته ښه واضح شوی وي او د مؤمنانو (صحابه ؤ) د لارې نه سېوا په بله لاره روان شو نو مونږ به يې واړوو هغه لور ته چې دی ورته واوړېدو او جهنم ته به يې داخل کړو او بد دی ځای د ورتلو (دا جهنم).

## ٤) جهاد به جاري ساتي:

جهاد به يوه لحظه هم نه معطل کوي، او نه به هم په يو وار د ټولو کفارو سره صلحه کوي، بلکې خامخا به ورسره په يو نا يو، محاذ کې جنګېږي او خپل جهاد به جاري ساتي.

په حديث کې راځي:

عَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ، عَنِ النَّبِيِّ ﷺ أَنَّهُ قَالَ : لَنْ يَبْرَحَ هَذَا الدِّينُ قَائِمًا، يُقَاتِلُ عَلَيْهِ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ، حَتَّى تَقُومَ السَّاعَةُ (صحيح مسلم: ٣٦٥٨) - **ژباړه:** د جابر بن سمره رضي الله عنه څخه نقل دي چې هغه يې د نبي عليه السلام څخه نقلوي چې فرمايي: هميشه به دا دين قائم وي، د مسلمانانو يوه ډله به پرې جنګېږي تر دې چې قيامت قائم شي.

## ۵) مخالفين به يې ډېروي:

د حق ډلې بله نښه دا ده چې ټول باطل پرسته خلک به يې په خلاف ولاړ وي او يو موټی به وي د ټولو غشي به د دوی طرف ته کاږه وي په خلاف به يې پروپاګنډ او تبليغات کېږي او هم به ورسره په عملي توګه جنګېږي. لکه په حديث د عبد الله بن عمرو بن العاص کې راځي چې ځيني علماؤ ورته صحيح او ځينو ورته جيد ويلي دي نبي عليه السلام فرمايي:

طُوبَى لِلْغُرَبَاءِ " فَقِيلَ: مَنْ الْغُرَبَاءُ يَا رَسُولَ اللَّهِ؟ قَالَ: " أُنَاسٌ صَالِحُونَ، فِي أُنَاسِ سُوءٍ كَثِيرٍ، مَنْ يَعْصِيهِمْ أَكْثَرُ مِمَّنْ يُطِيعُهُمْ " .(رواه أحمد: ٦٤٧٢)

**ژباړه:** د غرباؤ لپاره خوشالي ده نو ورته وويلی شو: اې د الله رسوله! غرباء څوک دي؟ هغه وفرمايل: دا هغه نېکان خلک دي چې د ډېرو، ناکارو خلکو تر منځ به پاتې کېږي، نه منونکي به يې له منونکو څخه ډېر وي.

دې حديث ته که څوک اوس متوجې شي نو په اسانۍ سره به وپېژني چې څوک د کفارو دوستان او څوک يې دښمنان دي؟! څوک د مرتدينو دوستان او څوک يې دښمنان دي؟! د چا طرف ته د کفارو غشي ډېر متوجې دي او د چا طرف ته د کفارو ډالري کڅوړې، شاباسياني او د مينې ډک پېغامونه متوجې دي؟! د نړۍ په سطحه د کفارو له خوا د چا تائيد ډېر دی او د چا مخالفت ډېر دی؟! د چا نه کفار د خپل امنيت، خير او ښېګنې طمعه لري او د چا نه يې نه لري؟! دا او دې ته ورته پوښتنې هله ځوابېدلی شي چې کله د موجوده ډلو تېلو په اړه د کفارو او مرتدينو تعامل ته کتنه وشي او له حاله يې ځان خبر کړي، نو ډېر په اسانۍ به ورته د حق ډله په ډاګه شي ان شاء الله.

اللهم أرنا الحق حقا وارزقنا اتباعه وأرنا الباطل باطلا وارزقنا اجتنابه، اللهم اجعلنا من المجاهدين الصادقين الثابتين على الحق وعلى صراط مستقيم، ربنا تقبل منا إنك أنت السميع العليم وتب علينا إنك أنت التواب الرحيم، آمين يا رب العالمين.

وصلى الله على نبينا محمد وعلى آله وصحبه أجمعين.

